# سپيني سپيني مۀ وايه

منير بونيرے

| | |
|---|---|
| د کتاب نوم: | سپینې سپینې مڼه وایه |
| شاعر: | منیر بونیرے |
| پروف ریډنګ: | سمیع الله ګران |
| کمپوزنګ: | عادل ارمان |
| سر پاڼه: | ثناء الله ځواب |
| وړومبے اشاعت: | 2019ء |
| بیه: | 220 روپۍ |
| شمېره: | 3000 ټوکه |
| خپرندوي: | شهباز خپرندویه ټولنه |

## د کتاب د میلاوېدو پتې:

**بره پښتونخوا:** ختیځ، ګودر، مازیګر، مومند، سهار، میهن، کلاسیک، روغانیوال، کتابپلورنځي، اسحاقزی مارکیټ، لاندیني پوړ، جلال اباد ښار افغانستان

یونس کتابپلورنځی عصمت چوک لغمان، ارمان کتاب پلورنځی ارزان قیمت کابل، عتیق الله کتاب پلورنځی لوګر، جدید اسلامي، ژوندون، لېوال، ولوله، سلیمان غر کتابپلورنځي خوست، روحاني بابا ګردېز

**کوزه پښتونخوا:** یونیورسټي بُک ایجنسی خېبر بازار، کتاب کور، زیب پبلشر، محله جنګي قصه خواني بازار، پښتو اکیډمي بُک شاپ، پېښور یونیورسټي، ثاقب پبلشر فقیر بُک ایجنسي، رحمت مارکیټ، عقب قصه خوانی پېښور شهباز کتابپلورنځی او قرطاسیه پلورنځی

بي بي حوا عالي لېسې تر څنګ، حاجي زمان کوڅه، حاجي عظیم مارکېټ جلال اباد ښار 0787886816 /0776920008 /0797920008

# فے ارمانی

ترون

د خپلې مور او پلار په نوم چې د هغوی پالنې
او تربیت زه ددې جوګه کړم چې الله تعالی راته
بلها مینوال په لر او بر کښې راکړي

منیر

feearmani@gmail.com

# بخت منېر او د وصال مازیګر

مونږه واړه وو چې چرته به تللو نو په ګاډو، لارو، کوڅو او دکانونو کښې به د اردو سندرې غږېدې په هغه وخت کښې به هم د پښتنو شاعرانو ملګرو شعرونه لیکل. وخت بدل شو ټولنیزې رسنۍ راغلې، هر څه ئې بدل کړل، تش په نوم ټي وي چېنلو باندې ئې خاورې واړولې. یا هغه وخت وۀ چې د ټي وي پروګرامونو له به څوک تلل نو د ځان سره به ځینو خلکو د چخچي ګبینان وړل چې داسې د بیا راتلو لپاره ځان ته اسانتیا پېدا کړي. هم دغسې به د غزل وئیلو لپاره به دغه لاره خپلېدله. اوس د سوشل میډیا دور دے، هغه د تش په نوم ټي وي چېنلو والا هم فېسبوک او یوټیوب چېنلو ته کښېناسته، اوس هرَ سړے خپل غږ ټولې نړۍ ته ښه په اسانه رسولے شي. قیصه اوږدېږي خو څو کلونه وړاندې کینګر ګلۍ بونېر ته د باچا بونېري خوا له تلے وومه د هغوي په حجره کښې د موسی احمد سالار، سمیع الله ارمانی، سلمان یوسفزے او نور ګڼ شمېر ملګرو سره په خبرو کښې بوخت وومه چې ناڅاپه راته باچا بونېري ووئیل چې نیازکه! دلته نانسېر بونېر کښې بخت منېر نومې هلک دے بلها ښکلے شعر لیکي او دا شعرونه ئې راته ووئیل:

پلار به مې وئیل ته خپل سبق وایه
لو مه کوه لور له نزدې مه ورځه

مور به مې ټوپک ته ګوته ونیوه
دغې سړي خور له نزدې مه ورځه

دا شعرونه چې ما واوریدل نو د بخت منیر لیدو ته لېواله شومه او باچا بونېري ته مې ووئیل چې دا شعرونه او نور شعرونه خو چې سړے د بخت منیر نه ریکارډ کړي- ما به په دغه وخت کښې " د وصال مازیګر "په نوم خپرونه د فیسبوک لپاره جوړوله نو ځکه مې وغوښتل چې دا ښکلي شعرونه هم د بخت منیر په غږ کښې ریکارډ کړم-د باچا بونېري دې کور ودان وي د بخت منیر سره یې په موبائل رابطه وکړه او لږ ساعت پس د باچا بونېري حجرې ته یو ساده باده کلیوال هلک راغے او هم دغه منیر بونېرے وو-
د خېر پخېر نه پس ئې راته بلها خواږه شعرونه ووئیل- یو خوا ئې په خپلو شعرونو کښې د پښتون اولس درد نغمه کړے وۀ نو بل خوا ورله خداے پاک لهجه او غږ هم ورکړے وۀ- د شعر د وئیلو انداز ئې داسې لګېدۀ لکه پهې په پرهر- دغه مازیګر مو په عمربېګ کینګرګلۍ کښې د منیر بونېري نه" د وصال مازیګر "خپرونه ریکارډ کړه او د ملګرو سره مو د فیسبوک له لارې شریکه کړه-

نن منیر بونیرے په تولـه نړۍ کښې د ادب مینه وال لري، زه ویارم چې د بخت منیر سره تر منیر بونیري ملګرے یمه او هیله مند یم چې زمونږ د مینې او ملګرتیا دا سفر به تر عمره روان وي۔ زۀ د منیر بونیري په شاعرۍ خبره نه کوومه ځکه چې زۀ د ادب په میدان کښې په خپله زده کونکے یم، تکنیکي غلطۍ به پکښې وي، د منیر بونیري په شاعرۍ کښې کلیواله او په خصوصي توګه بونیرۍ لهجه ډېره زیاته ده، باید په دې پرې نیوکه ونه شي۔ کار ته دې ورلـه ملګري وګوري چې منیربونیري او نورو شاعرانو ملګرو د ادب یعنې د شعر په میدان کښې څومره کار وکړو، څومره خلک یې د شعر سره اشنا کړل۔

اوس خو په لارو، کوڅو، ګاډو او دکانونو کښې د اردو سندرې نه بلکې خلک د پښتنو شاعرانو شعرونه اوري، د شاعر لیدو ته لېواله وي او د زړۀ نه ورلـه مینه هم ورکوي۔ مونږ د ځېنو مشرانو شاعرانو نه دا هم اورېدلي دي چې هغوي به چاته دا هم نه شو وئیلي چې زۀ شاعر یمه خو اوس شکر دے دغه هر څه بدل شو، خلکو ته شعر هم وئیلے شو او ځان ته شاعر هم.

منیر بونیري خپله شاعري د عام اولس نه واخله د پاکستان تر پارلیمانه ورسوله۔ دا د منیر بونیري خوش بختي ده چې په ژوند ورلـه پښتنو مینه ورکړه ګنې پښتانه خو پس له مرګه خلکو ته درناوے وربخښي۔

زه خوشحاله یمه چې زما کراو بې ځایه نه وو، هغه د بونېر په دنګو دنګو غرونو کښې کښې هغه ورک اواز مې ریکارډ کړو او پښتنو ته مې ورسوو. خو کله کله د خان سره د استاد صابر دا شعر هم زمزمه کړمه

چې زما ملګري دې پښتو وائي پښتون دې مني
ماته دې خېر دے بوموړے ادیب نه وائي څوک

هر څو که ما د منیر بونېري د شاعرۍ مسوده نه ده لوستې خو شاعري مې ورله اورېدلې ده، د پښتون اولس درد ئې نغمه کړے. په دې کړکېچن حالاتو ئې نیوکې کړې دي په شاعرۍ کښې ئې د راتلونکي سبا زیرے دے.

خدا ے دې وکړي چې منیر بونېرے خپله د شاعرۍ لار هم دغسې جاري وساتي او خدا ے دې وکړي چې منیر بونېرے په دې لاره ستړے نه شي.

په پښتنه مینه او درنښت

نیازک خان

درګۍ ملاکنډ

۲۰۱۹.۱۰.۰۶

د بونير سيمه که يو طرف ته زرخېزه ده او د خپل شينکي او قدرتي ښائست په نوم پېژنګلو لري نو بل طرف ته ادب خېزه او مردم خېزه هم ده. وخت په وخت ئې داسې شاعران، اديبان، سياسي مبارزان او قامي اتلان زېږولي دي چې پښتو ژبه، پښتو ادب، پښتون سياست او پښتون تاريخ پرې په خپل خپل ځای وياړ کولے شي. په دغه نوموړو کښې نن سبا يو نوم د ځوان فکره او د ځانګړي اسلوب خاوند شاعر منير بونيرے هم دے. منير بونيرے د بونير په نانسير کلي کښې د ولي داد کره د جنورۍ په ورومبۍ نېټه کال نولس سوه نوي کښې سترګې غړولي. تر لسم ټولګي يې زده کړې ترلاسه کړې او د کال دوه زره نهم راسې د پښتو ژبې شعر ليکي. هغۀ په نزديو کښې د ټولنيزو رسنيو (سوشل ميډيا ) د لارې د يو ښۀ شاعر په نوم پېژندلے شوے تر او سه يې د خېبرپښتونخوا به شمول افغانستان او ټوله نړۍ کښې يو شمېر مينوال شتون لري هم د دغه مينوالو په خواست (او په دې هيله چې شعر به يې د پښتو ژبې د پرمختګ او په عام اولس کښې د شعور پېدا کولو لاره جوړه شي) منير بونيرے د "سپيني سپيني مه وايۀ" په نامه خپله ورومبۍ شعري مجموعه چاپ کړه چې پکښې زياتره برخه د غزل ده او نظم يې هم د خپل کتاب پاڼو ته سپارلے دے.

په کتاب کښې چاپ شوي غزلي او نظمونه په يوسفزۍ لهجه کښې دي چې لوستونکي او اوريدونکي دواړه پرې ښه په آسانه پوهېدلې شي. منير که څه هم خپلې زده کړې سرته نه دي رسولي. ولې بيا يې هم په خپلو شعرونو کښې تل د ازادۍ،

بشریت او زده کړو په تړاو ملي جذبه کارولې په خپلو شعرونو کښې یې زیاتره د عدم تشدد لاره خپله کړې او د ټوپک او د زرو سره یې په هر ډګر اختلاف ساتلے دے لکه چې وائي

پلار به مې وئیل تهٔ خپل سبق وایه
لۀ مۀ کوه لور له نزدې مه ورځه

مور به مې ټوپک ته ګوتهٔ ونیوهٔ
دغه سړي خور له نزدې مه ورځه

ځلمي شاعر منیر بونیري د هر په اسانه ژبه دا خبره ښکاره کړې چې تعلیم یو اځینی لاره ده چې پرې یو انسان (ښځه او نر) د شعور لمن نیولی شي هغهٔ لکه د نورو پښتنو مئېندو د خپلې مور خبره هم د یو پېغام په غېږه کښې نغښتې او دا یې ویلي دي چې ټوپک سړي خور دے. باید له دې ځخه ډډه وکړې شي خو له بده مرغه پښتون اولس ټول عمر په وړو وړو خبرو خپل آبۍ راوړي د ټوپک په زد تورو خاورو لاندې کړې دي.
منیر بونیري په خپله د خپل چاپېرچل یو داسې عکاس دی چې هغهٔ څه هم لیدلي، محسوس کړي هغهٔ یې د شاعرۍ تصویر دے د هغهٔ شعر د ومره زورور دے چې ځان په خلکو په زور مني او خلکو ته پکښې یو رښتوني تصویر ښکاري ځکه خو عام خلک د هغهٔ شعرونه د خپلې خبرې اؤ دلیل په توګه پکار اوي. ځلمي شاعر منیر بونیري چې د شعر په تخیل کښې څومره د لېونتوب انتها ته رسېدلے دومره هغهٔ د احساس په زنځیرونو کښې راګېر دے. د هغهٔ په شاعرۍ کښې د وخت

نا کړدې، بې وسي او درد څرګند دے. هغهٔ سره د هغهٔ ماشوم هم فکر دے څوک چې د ژمي په سوړ سحر کښې خپې ابله بښې خپلې ګډې بيېزې څروي. هغهٔ د خپل کلي ملا هم په دې نيوي چې د لوئے اختر په خطبه کښې د اسماعيل (عليه السلام) د قرباني قيصه کوي خو د خپل چم هغهٔ نهر ماشوم يې نه يادېږي. منہر د هغهٔ ماشوم غم هم خوب ته نهٔ دے پرېښودے څوک چې د لوئے ښار په فټ پات د سکول په بسته کښې د پالشو ډبې او برش ګرځوي او په خپلو وړو وړو نازکو چاچو د خلکو پيزار پاکوي.

هغه ته د هوائي ډز سره د هغه بدبختې مور، چغې وريادېږې چې پرې د هغې يوائينې زوے وژل شوے او هغهٔ په خپل شعر کښې د جانان ترلاسه کولو لپاره سوال هم جائز کړے او ويلي يې دي

خلـــک د نشـــو لپـــاره خېـــر ټولـــوي
زه بـــه د جانـــان لپـــاره ســـوال نـــهٔ کـــوم

د دغه نوموړي په هر شعر کښې عجيبه عجيبه رنګونه، خيالونه او فکرونه موجود دي او په دې سبب د منہر هر کلام د وخت د حالاتو ترجمان دے. منہر بونہري چې د شعر له لارې په ټولنه کښې کوم پيغام خپروي، د هغې عکاسي کوي او دا د عام سړي کار نهٔ دے. بايد په دې کار مونږ د هغه ستائينه وکړو ولې چې ټوله ورځ د لاس پښو مزدوري کونکې منہر بونہري په خپل سترې وجود د قام، ټولنې او ژبې لپاره خپله هڅه که څه

هم په ښينو خلکو د هغه شعرونه ښه نه لګي او وخت په وخت په هغه پسې پروپېګنډې شوي خو بيا هم منير خپل کار روان ساتلے او د هغې ميوه نن ستاسو په لاس کښې د کتاب په شکل کښې موجوده ده. خدائے دې وکړي چې منہر دا وړومبی شعري مجموعه د پښتو ادب او پښتون قام په ګټه راشي.

سلمان يوسفزی، باچا خان مرکز پېښور

03-10- 2019

نورې تبصرې دې په جمال نۀ کوم
بس دے د غانتول په زنه خال نۀ کوم

ما د مینې تبه څکه نۀ پرېږدي
زۀ چرته دارو نۀ خورمه پال نۀ کوم

ښکلي مې بلها پګښې ځائے کړي دي
زۀ د زړۀ د کور مېنځ کښې دېوال نۀ کوم

تا چې پرې وعده د راتلو کړې ده
څنګ به هر کلے د نوي کال نۀ کوم

خلق د نشې دپاره خېر تولې
زۀ به د جانان دپاره سوال نۀ کوم؟

وی وئیل منیر لېونے شوے دے
زۀ چاله ګلونه په رومال نۀ کوم

لکه ماشوم مې بېګا ټوله شپه کړه ویر جانانه
رانه په اوښکو باندې وران شو ستا تصویر جانانه

د زړه په سر مې وه ښخ شوي خوب ته یې نه پرېښودم
ستا د ښې ائیسته سترګو بانه د نظر تیر جانانه

بس خو تر مرګه به زما سترګې د نم ډکې وي
زه ښه پوهیږمه د خپل خوب په تعبیر جانانه

د زړۀ په سر کښې د زړۀ سرهَ لتې مۀ راکوه
زۀ دې مرید یم لېونیه تۀ مې پیر جانانه

د خوشحالو بوتې یې ټول د زړلې زړلې ویستې
د زړه په زمکه مې ستا غم کړے دے سیر جانانه

خدائے دې مئین کړه چې احساس درته د خوږ زړۀ وشي
یه په ښائست باندې مغرور په زړۀ کافِر جانانه

تا خو به خپلې خوشحالۍ په الله هو اوده کړي
په ما ستا غم کړې د ژوند ټولې شپې شوګیر جانانه

چې ما په خپل غزل کښې ستائي زۀ یې تصویر جوړووم
منیر دې کړي الله شاعر، ما مصوّیر جانانه

منیر بونیرے

## سپینې سپینې مه وایه

درد په پرهرونو کښې تنګ شوے دے
خلق په ښارونو کښې تنګ شوے دے

چا مندر ګرجې ته زنځیر واچوۀ
خوک په جماتونو کښې تنګ شوے دے

دغه سرے څومره بدنصیبه دے
دے زمونږ په زړونو کښې تنګ شوے دے

یوۀ کور کښې اوسیږي خو چې دا ولې؟
ورور په خپلو ورونړو کښې تنګ شوے دے

دې ظالم سامراج دومره بدنام کړۀ چې
حسن په عکسونو کښې تنګ شوے دے

لویه شوم منیره ستا د لاس بنګړے
نور مې مړوندونو کښې تنګ شوے دے

کار مې مازغه نه کوي بس نه کوي
صبر مې زړه نه کوي بس نه کوي

دې خلقو څه ونه کړه څه نه کوي
دا خلق څه نه کوي بس نه کوي

چا چې واده کړے دے بد یې کړي
څوک چې واده نه کوي بس نه کوي

دا خلق ولې ځان له تندې وژني
کاني اوبه نه کوي بس نه کوي

زړه مې مات شوے دے اوس لېچو له شړنګ مه ورکوه
بس کړه د ختو دېوالونو له رنګ مهٔ ورکوه

اوس ترې د مکر په ټکور ټکور کښې ساه اوباسې
سوو زخمونو له ټکور د پتنګ مهٔ ورکوه

چې خېر دې نهٔ ورکوهٔ خېر دے رخصت کړے به دې وهٔ
کچکول له لتې اے اشنا د ملنګ مهٔ ورکوه

دوي له شراب ورکړه چې تال غونده يې وځنګوي
ساقي دې بعضې غم خوړلو له بنګ مهٔ ورکوه

چې هر يوٙ ساز يې راخېژي په زړهٔ پولې مطربه
د غم تار نيسه د مستۍ تار له ټنګ مه ورکوه

بس کړه په راواخله يې په غاړه يې کړه شرمېږې ولې؟
څما د لاسو امېلونو له زنګ مه ورکوه

چې بنهٔ پوهېږې اے منېره چې په زمکه يې غورځې
جانان له لاس کښې بيا ګلونه او بنګ مه ورکوه

خوب مې وليد چې زما نه تښتېدې
بلاګانې د انسانه تښتېدې

ساقي پوئې شومه جامونه دې نسکور کړۀ
ساقي پوئې شوم د ګناه نه تښتېدې

منير جانه د ناوې لاندې دې شپه شوه
منير جانه د بارانه تښتېدې

مه رانجه چېړئ يارانو مه بانه چېړئ يارانو
نن مې ډېر زړګے خفه دے نن مې مه چېړئ يارانو

اسرافيل چې شپېلۍ پوکړي دوي به هله راويښېږي
ستاسو دا عادت ښه نه دے تاسو مړه چېړئ يارانو

که اتڼ ته مو زړه کيږي د حجرې غولي له راشئ
د ايلم سر ته به خېژئ که تپه چېړئ يارانو

هسې نه په بېخودۍ کښې چرته بل څه بل څه اوئ
منير ښلي دي نشه دے دے به نه چېړئ يارانو

چې د ملا خبره بلکل ټیک ده
نو بیا زما خبره بلکل ټیک ده

څنګه چې ستا خبره بلکل ټیک ده
داسې زما خبره بلکل ټیک ده

هنر او علم زده کول پکار دي
او د بابا خبره بلکل ټیک ده

ښه لکه ته په ما رښتیا مئین یې
ښه لکه دا خبره بلکل ټیک ده

د منیر جان خبرې ګډې وډې
د مولانا خبره بلکل ټیک ده

سيورے د چنار خوږ دے
بس ستا انتظار خوږ دے

هر چا په زړه لاس ايخے
هر خوک وايي يار خوږ دے

زه يې سترې نه کړمه
تګ د دغې لار خوږ دے

ياره په ايمان وايه
کلے او که ښار خوږ دے

ماته دواړه يو شان دي
مور خوږه ده پلار خوږ دے

ستا دا قدرتي حسن
نه غواړي سنګار، خوږ دے

ځان له پرې زړهٔ مه چوه
هسې ستا رخسار خوږ دے

ما ورته لوګے کړئ نن
ما ترې نه کړئ ځار خوږ دے

بیا یې شراب څښلي دي
دے خمار خمار خوږ دے

څوک په پېښور مئین
چا ته قندهار خوږ دے

یه منیره خوښ مې دے
وایمه په جار خوږ دے

جنګ د ظفر دې سره نه کې کنه
په چا باور دې سره نه کې کنه

چا سره شر دې سره ولې وکړې
چا سره شر دې سره نه کې کنه

چې په کرسۍ پسې یې ست ماتېږي
کار د ممبر دې سره نه کې کنه

اے چې خبره په خبره کېږي
بس خان له ښکر دې سره نه کې کنه

چې د غربت ورپورې توقه کیږي
بس جو اختر دې سره نه کې کنه

چې سیلابونه یې راله وړي منېره
د ګلوکر دې سره نه کې کنه

لکه سرې ته چې په شته سترګو کښې لار نهٔ ښکاري
ماته دا ستا د خلې اقرار هم څهٔ اقرار نهٔ ښکاري

سرې له زړهٔ خوري خو جانانه څوک پرې نهٔ پوهیږي
دا محبت هډو دې خلقو ته څهٔ کار نهٔ ښکاري

په هغه زوږ خوند د چنار څوکې ته مهٔ خیژه نور
زمونږ د کوره د زړهٔ سره وس چنار نهٔ ښکاري

جانانه ځکه د خپل زړهٔ زخمونه نهٔ شمارمه
ماته ممکنه د اسمان د ستورو شمار نهٔ ښکاري

قسم په خدائے دے چې په دې سرې غزا کښې خو
د کلي خلقو ته جانانه ګنهګار نهٔ ښکاري

زهٔ د خپل زړهٔ زخم پخپله هم ګنډلے شمه
خو په دې توره شپه د ستنې ثوم اؤ تار نهٔ ښکاري

زهٔ د ژوندون د بلها سختو نه تیر شوے یمه
ماته دلدار ښکاري دیدار ښکاري خو دار نهٔ ښکاري

چــې د ختــو گتــو کــور وي
هــر دېــوال پــه لوګــو تــور وي

یــــؤ چینـــا پکښـــې ولاړ وي
د چنچڼـــو پکښـــې شـــور وي

زهٔ رپېــــړم د یخنـــــی نـــــه
تـــا بـــل کـــړے راتـــه اور وي

خوینـــدې وروڼـــه رانـــه تـــاؤ وي
بـــس قیصـــې د پـــلار اؤ مـــور وي

زمــونږ کــلي کښــي نــور څــۀ وي
لېونیـــه خـــو لـــږ لـــور وي

بـــس چـــې امـــن وي یـــارانو
نـــۀ دې زر وي نـــۀ دې زور وي

خوشـــحالي بـــه پـــه ګـــډا وي
لېـــونی غـــم بـــه شـــمکور وي

مینـــه نـــاک خلـق مـــې خـــوخ وي
که څوک سپین وي او که تـــور وي

منیـــر نـــۀ څکـــي خـــو چـــې وڅکـــي
پـــروت تمامـــه شـــپه نســـکور وي

بنـــهٔ مســتي كـــوه قــاري صــيب
زنـــدګي كـــوه قـــاري صـــيب

څـــو ګوټونـــه كـــهٔ حـــرام دي
څـــو لـــوګي كـــوه قـــاري صـــيب

معـــززيـــې محـــترم يـــې
ملنګـــــي كـــوه قـــاري صـــيب

د كـــدو خـــوراک ثـــواب دے
غريبـــــي كـــوه قـــاري صـــيب

تـــه خـــووس پـــه عربـــى كښـــې
شـــاعري كـــوه قـــاري صـــيب

د منيـــــــر غزلـــــــې اوره
اســـويلي كـــوه قـــاري صـــيب

څـــه د كمـــال زړه مـــې دے
ښــه مينـــوال زړه مـــې دے

هــر يـــو ښـــكلے خپـــل گڼـــي
ســم مالامـــال زړه مـــې دے

دې کور کښې بس دا یؤ ماشوم د شور وۀ او تا مړ کړۀ
ظالمه نو د شپړو خویندو ورور وۀ او تا مړ کړۀ

د دې سپین ګیري پلار د لاس همسا وه او تا وسوه
د دې سپین سرې مور د سترګو تور وۀ او تا مړ کړه

څۀ وس به توله شپه دغسې مړو ایرو ته ناست یو
زول ژمے دے باران دے نرے اور وۀ او تا مړ کړه

هغه خو به د جرم د نامې نه هم نفرت کؤ
هغه بیخي په دې حقله شمکور وۀ او تا مړ کړه

منیر خو وه د مینې کرونده‌ې ته ملا تړلې
منیر خو د نفرت بوټي له لور وۀ او تا مړ کړه

داسې په سازونو مري
داسې د جال زړهٔ مې دے

یوٶ ښار ته مې نهٔ پرېږدي
یوٶ کلیوال زړهٔ مې دے

سم راپکښې وخیژي
داسې کلال زړهٔ مې دے

ستا پښتانتې ښکلے دے
ستا په مثال زړهٔ مې دے

په منیره تا غواړي
تا ته لېوال زړهٔ مې دے

زړهٔ مې نـرے نـرے خـوږېږي او ورېـږي بـاران
بـس یـوُ سـړے راتـه یـادېږي او ورېـږي بـاران

عجیبـه دا ده چې د واورې پـه دې یـخ موسـم کښې
پـه یـوُ مـزدور خـولې بهېـږي او ورېـږي بـاران

یـوُ مسـافر کـډه راونغښـته او کـلي تـه ځـي
یـوُ مسـافر ورتـه پسښـېږي او ورېـږي بـاران

سترګې یې سرې دي بنګ یې ځښلي ګډې وډې وايـي
منیـر پـه لاره ځـي ځنګېـږي او ورېـږي بـاران

درد مې دا زړهٔ تـړلے ګرځـي پـه پرهـر پـسې
تـول ښائستونه چې مې چـورلي پـه نظـر پـسې

شـمع ښائسـتـه ده يـؤ مقـام د ښائسـتونو لـري
ځکـه پتنـګ ګرځـي د سرو لمبـو پـه سر پسې

کـړې پتنګـانو شـمعې مـړي او بـورا، ګـل، اوريـژؤ
ګرځـي وس دواړه د جانـان پـه سـپين بشرـ پسې

راته ښائست کښي دا سپوږمۍ د لمر نه کمه ښکاري
ځکه چې عمر لـه سـپوږمۍ ګرځـي پـه لمـر پسې

شراب خوړه نشه ده
خو بنګ هم بنه نشه ده

هسې دولت هم ګورے
څه عجیبه نشه ده
نن ملالې کړې ده
نو نن تپه نشه ده
په ائینه کښې ګوري
او ائینه نشه ده
هغه انه هم نشته
که په انه نشه ده

د منیر شعر څه وي خو
ټوله نشه نشه ده

راځي راته په غوږ کښې په سلګو سندرې وايي
ستا ياد راته اشنا ستا د کوڅو سندرې وايي

دا څوک دے دا د چا د محبت په اور ستي دے
راځي دلته تر نيمو نيمو شپو سندرې وايي

څو ځله يې ترې ژبه په پښتو وئيلو پرې کړه
جانان په زړه سنګين لا د پښتو سندرې وايي

چنچڼې د چنار سر له راټولې شوې ماښام شۀ
بلبلې اوده کيږي په رو رو سندرې وايي

منيره ستا نامه پکښې په هر يوۀ شعر کښې اخلي
چې پيغلې په اختر کښې په کوټو سندرې وايي

چې تر غرمې په اوازونو د مور نهٔ وېښېږي
سادر د زلفو کړي په سپین مخ راخور نهٔ وېښېږي

تر مازیګره به اوده وي د چینار سیوري ته
په خوب مئین دے د چنچڼو په شور نهٔ وېښېږي

دا د اکبر د زمانې هغه لټان خلق دي
کهٔ په سرونو باندې یې هم بل شي اور نهٔ وېښېږي

زما ساده زړګیه بس کړه تنګول مهٔ کوه
اوده وېښېږي خو یار ویخ دے بس نور نهٔ وېښېږي

خدایه منیر چرې اوده په داسې خوب مهٔ کړې چې
لکه د مړي په تهمت او پېغور نهٔ وېښېږي

نـۀ نـۀ دا نـۀ چـې خـدائے نـۀ راکـولې
خـو دې خپلـې غریبـی نـۀ راکـولې

مـونږ د زور د زورورو خلقـو نـۀ یـو
پـه رضـا یـې لېـونی نـۀ راکـولې

نـــن مـــې جـام نـــۀ پـــه جـامونو شراب څکـلي
د تـــيرا بنګـــو ټـــالى نـــۀ راکـــولې

مـــا بـــه يـــۀ نشـــه پرېښـــودې نـــۀ وه خدايـــه
ښـــۀ ده تـــا رالـــه روپـــى نـــۀ راکـــولې

شـــوګيرو رالـــه وې ســـترګې ړنـــدې کـــړې
خـــو هيچـــا د خـــوب ګـــولى نـــۀ راکـــولې

ضرورت کـــه مـــې دنيـــا تـــه چرتـــه نـــۀ وے
خـــدائے بـــه مالـــه زنـــدګى نـــۀ راکـــولې

پـــه سرو ســـترګو يـــې ژړل مـــور تـــه لګيـــا وه
منيـــر مالـــه بيلـــورى نـــۀ راکـــولې

# دوه شعرونه

د يـوٕ سـړي نـه مـې سـړے جـوړ کـړے
هغـــه سـړے راتـــه سـړے نـهٔ وايـــي

زهٔ اوس رښــتيا خــبرې نــهٔ کــووم نـــو
اوس راتــه هــيڅ څــوک ليــونے نـهٔ وايــي

زمـا ورسره زړهٔ اے پـه ايمـان تـوتې تـوتې شـهٔ
تصـوير رانــه د لاســه د جانـان تـوتې تـوتې شـهٔ

دا نن يې په سپين مخ باندې خالونه دومره ډېر وو
کـه نـهٔ سـتوري راپريوتـه اسمان تـوتې تـوتې شـهٔ

په څۀ خفه یې ولې نۀ راځي جانانه دلته
که مینه ګرانه ده خو وینه ده ارزانه دلته

هغه د غرونو په سرونو واورې نۀ ورېږي
په ځائے د واورو اور بلیږي د اسمانه دلته

تۀ لیونے نۀ یې جانانه چې نکریزې غواړې
وس خو په وینو خلق لاس سره کئ نادانه دلته

د وخت د هر قدم د لاندې په دلو دلو مري
مېږي ځوږ شوي په والله چې د انسانه دلته

بس ستا په یاد باندې ژوندے یم زندګي تیرووم
زما نور څوک دي یه منېره بې لتانه دلته

ته زما نه نۀ يې خبر
نۀ جانانه نۀ يې خبر

زۀ په تا ښائيسته يمه
تۀ پېزوانه نۀ يې خبر

بيا دې راپه ياد کړۀ يار
وه بارانه نۀ يې خبر

مونږه په پردي جنګ کښې
مرو افغانه نۀ يې خبر

تـــه زمـــونږ د بـــر کـــلي
غــټ مــلا نــه نــه یــې خـــبر

ســـتا خـــاني زمـــا پـــه سر
ولـــې خانـــه نـــه یـــې خـــبر!

دوه گوټـــــه شراب وڅکـــــې
بیـــا د ځانـــه نـــه یـــې خـــبر

تـــه زمـــا د ســـوي زړه
وریـــت ارمانـــه نـــه یـــې خـــبر

ســـتا منیـــر پـــه تـــا پســـې
مـــري خـــو گرانـــه نـــه یـــې خـــبر

بچے په ځان باندې یوۀ قسم الزام ونۀ ساتې
وجود مزدور ساته خو ذهن غلام ونۀ ساتې

داسې کار وکړه ځان د وخت نۀ وخت د ځان غلام کړه
داسې کار وکړه چې وختونو ته بام ونۀ ساتې

د خدائے د مخې ګناهونه کوه مۀ ویرېږه
خو د انسان د مخې لاسو کښې جام ونۀ ساتې

دا چې خدائے او رسول نۀ مني قرآن ته ګوره
دغه سړے چرته سړیه امام ونۀ ساتې

منیر پاګل خو چې نا وکړي بیا یې نا کړي وي
اے لیونی به شې دا لارې ماښام ونۀ ساتې

چا جام په لاس د مېکدې سره تصویر ویستے دے
چا په احرام کښې د کعبې سره تصویر ویستے دے

ګنهګار دواړه یو خو دغه سړے ډېر ګنهګار
چا چې د پاک نبي روضې سره تصویر ویستے دے

دا مصوير په کلیوال رنګ باندې ډېر مئین دے
خاورین منګي له یې چینې سره تصویر ویستے دے

خوا کښې یې لیک دي چې اے دا تا سره خوند نهٔ کوي
چا یو پښتون له د بستې سره تصویر ویستے دے

دغه تصویر د منیر جان د شوګیرو ثبوت دے
په توره شپه یې د ډیوې سره تصویر ویستے دے

غوښتنه نهٔ د تخت او نهٔ د تاج کووم کاکا
زهٔ ولې مرم؟ زهٔ دې له احتجاج کووم کاکا

دا ډېر خلق زما نه هم په دې خبره سوزي
چې زهٔ د پښتنو په زړونو راج کووم کاکا

دا لپې لپې خاؤرې هم له دغې وجې خورمه
نهٔ سوال کووم نهٔ غلا کووم نهٔ بیاج کووم کاکا

د کفر د فتوې نه پرې لګ ځان ډډې ته کومه
مونځ دلته یؤ رواج دے تش رواج کووم کاکا

دارو مې د پولې پولې لاسونو څه ګران نهٔ وي
خبره د دې خوږ زړه د علاج کووم کاکا

منیره لیونیه پښتانهٔ را یؤ کوومه
د زوړ قمیص په څوي تنړی کاج کووم کاکا

زما د سوال په جواب نهٔ پوهېږي
جینۍ بیخي په حساب نهٔ پوهېږي

د نفرتونو په ګناه پوهه دے
د محبت په ثواب نهٔ پوهېږي

څومره په مینه باندې واخستو یې
خو په معنا د ګلاب نهٔ پوهېږي

د اوسنو خلقو نیتونه توبه
څوک یې په ښهٔ او خراب نهٔ پوهېږي

منیر ته ستغې سپورې څهٔ له وایې
منیر پاګل خو جناب نهٔ پوهېږي

جانانــه بــدنیتی او گمانونــو لــه راځــې
اے کـلي تــه جانانــه نفرتونــو لــه راځــې

زمــونږ خــو پکښــې کـال و سر روژه ده د زړهٔ سره
دا تــهٔ راپســې کومــو اخترونــو لــه راځــې

کــه خامخــا راځــې نــو سـپېلني ځـان سره راوړه
چــې دلتــه دې وړســترگو نظرونــو لــه راځــې

د سـترگو د خــوږوالي پکښــې هــیڅ نشــته جانانــه
دې وران گــودر او ســوو چینــارونو لــه راځــې؟

د ښـار دغــه پیکــه مــازیگري تــرې غــوره نــهٔ دي؟
د کــلي دې غمژنــو مابښــامونو لــه راځــې

چې ستا پکښې منېره اوس نامه قدرې څوک نهٔ اخلي
ســاده نــهٔ یــې چــې داســې محفلونــو لــه راځــې

دور د پیسې دے جې
ژوند ډېر بې مزې دے جې

چانه چې تپوس کووم
بس زرې زرې دے جې

مرګ ته نزدې شوي یو
مرګ هم رانزدې دے جې

نن مې د دې زړۀ په سر
درد بې اندازې دے جې

نن به منیر نۀ چیړئ
دے نن بې نشې دے جې

زما غانټول زما رېدے مړ دے
زما ساده بساده لالے مړ دے

زمونږ د کلي خلق ټول ژاړي
زمونږ په چم کښې یؤ سړے مړ دے

په پېښور کښې دهماکه شوې ده
د دې سړي پکښې نمسے مړ دے

زما د زړۀ د سره وینې څاڅي
زما د زړۀ د سر ازغے مړ دے

هغه چې ته به يې د خوبه ويستې
لېونی هغه لېونے مړ دے

په شاعرانو اديبانو مئين
خلقه نظار شامنصورے مړ دے

هغه چې تا به ترې رانجه اخيستۀ
خبر يې هغه بنجارے مړ دے

خلقه په مرګ باندې يې نۀ يم خفه
خو په زړۀ ډېر سورے سورے مړ دے

ستا منير ستا د پند غمونو سره
پروت دے په سرو غرمو موسکے مړ دے

کـهٔ فرښـتو مـې پـه لمنځونـو بانـدې کرښـه راښـکه
خدایـه زمـا پـه ګنـاهونو بانـدې کرښـه راښـکه

زمـونږ د زړونـو نـه کینـه او حسـد نـهٔ وتـو نـو
څکه خـو خـدائے پـه بارانونو بانـدې کرښـه راښـکه

مـا وې چـې زړهٔ درکـړم نـو تـهٔ بـه ورسره څـهٔ کـوې
هغـهٔ ظـالم بـه پـه لاسـونو بانـدې کرښـه راښـکه

پوره مې نهٔ کړه خو بې بې مـا سـتا دې یـؤ ارمان لـه
پـه خپلـو ډېـرو ارمـانونو بانـدې کرښـه راښـکه

مـا بـه پـه ټوقـو کښـې وې ښـهٔ نـهٔ دي نـو یـه منیـره
تـا بـه رښـتیا خپلـو شـعرونو بانـدې کرښـه راښـکه

زۀ بــه مــدام کـــووم پـــه اوښـــکو اســـویلو شـــاعري
زمـــا نـــه نــۀ کېـــږي د ښـــکلو اننګـــو شـــاعري

زۀ بـــه ســـتائینې د ځوانـــانو د غېـــرت کوومـــه
چرتـــه بـــه ونکـــړم د پېغلـــو لوپټـــو شـــاعري

ماته خو بل سړے بد ښکاري چې سرې شونډې ستائي
پخپلـــه خنـــګ ولـــیکم زۀ پـــه شـــونډو سرو شـــاعري

نـــن دې غمونـــو ټکـــولے زړۀ څـــه داســـې وایـــي
چرتـــه خـــو ولیکـــه منېـــره پـــه ســـپرلو شـــاعري

جانـــان زمـــا د ارمـــانونو سره لـــوبې وكـــړې
نـادان زړګـــي مــې د دردونــو سره لـوبې وكــړې

وس مې د سترګو نه د اوښکو په ځائے وینې څاڅي
زمـــا ګريـــوان د ســـيلابونو سره لـــوبې وكـــړې

لکـــه بـــوګرا یمـــه خاموشـــه هـــيڅ وئـــيلے نـــۀ شـــم
نـــورې مـــې ډېـــرې د ګلونـــو سره لـــوبې وكـــړې

مونږ ورله زړۀ په مینه ورکړو مونږ ویل وبه یې ساتي
ښـــکلو زمـــونږه د دې زړونـــو سره لـــوبې وكـــړې

جانانـــه تـــا د خپـــل ښائیســـت پـــه لمبـــو ســـوے یمـــه
لکـــه پتنـــګ مـــې د اورونـــو سره لـــوبې وكـــړې

اے د منیـــر پـــه زړهٔراســـمه تـــۀ بـــه کلـــه لاړ شـــې
غمـــه زمـــا دې د خیـــالونو سره لـــوبې وكـــړې

د یوؤ انسان مازغه بیخي خراب دي
د منیر جان مازغه بیخي خراب دي

دے پښتانهٔ له دوزخونو ویرئ
د ملا جان مازغه بیخي خراب دي

مونږ وړي یو خو ژرندې نهٔ ستو ښا
ځه ستا د خان مازغه بیخي خراب دي

تهٔ په ایمان د ځان څهٔ غور وکړه
ستا په ایمان مازغه بیخي خراب دي

بس کلـــه کلـــه تصـــویر اوباســـمه
ځـــان لـــه پخپلـــه تصـــویر اوباســـمه

بیـــا وایـــم مـــا دا ځـــان لیـــدلے نـــهٔ دے
بیـــا وایـــم څـــهٔ لـــه تصـــویر اوباســـمه؟

قسم پـــه خـــدائے چـــې بـــه غلبېـــل غلبېـــل وي
کـــه دې خپـــل زړهٔ لـــه تصـــویر اوباســـمه

څـــوک چـــې زمـــا پـــه تصـــویر کړښـــې راښـــکي
لاړ شـــم هغـــه لـــه تصـــویر اوباســـمه

اے ســـتا دا ســـترګې پکښـــې نـــهٔ راولم
اے ســـتا بانړـــه لـــه تصـــویر اوباســـمه؟

منیـــر پاګلـــه خفـــه کیـــږې خـــو نـــهٔ
منیـــر پاګلـــه تصـــویر اوباســـمه؟

دوه رنګونه سپین او تور
غم او ښادي خور او ورور

ما او تا جوړېږو نه
مونږه دواړه اوبه او اور

پوېږ به شوم چې ستړے شوې
تا چې به وې ښه نو نور

ما به درنه اووژني
دا د خاموشۍ دا شور

دا پرهر نور مه چېړئ
دا زړۀ اخلي نه ټکور

ستا منیر چې وځکي نو
پروت وي ټوله شپه نسکور

تـــا بـــه رانـــه ښـــار وخـــوري
مـــا بـــه انتظـــار وخـــوري

تـــه د ښـــاره نـــه راځـــې
تـــا خـــو دې خامـــار وخـــوري

دے یـــواځې مـــه پریـــږدئ
زهـــر بـــه پـــه لار وخـــوري

وئ وئیـــــل ناوختـــــه دے
نـــن خـــو بـــه مـــې پـــلار وخـــوري

دغـــه لـــږ مازغـــه مـــې دي
دا بـــه رالـــه یـــار وخـــوري

دا ســـــړے خفـــــه شي نـــــو
بنـــــګ وڅکـــــي کوکنـــــار وخـــــوري

دومـــــره غصّـــــه مـــــهٔ کـــــوه
دا بـــــه دې ســـــنګار وخـــــوري

نـــــیم غـــــوزان درورســـــئ
نـــــیم په لار ریبـــــار وخـــــوري

یـــــا بـــــه دې نظـــــر وخـــــوري
یـــــا بـــــه دې ازار وخـــــوري

اے د چـــــا خـــــیرې بـــــه دې
ګـــــل غونـــــدې رخســـــار وخـــــوري

یـــــه منیـــــره زړهٔ بـــــه دې
دا بـــــې ننګـــــه یـــــار وخـــــوري

په داسې مینه دې جانانه خدائے اور پورې کړي
چې دیدنونه پکښې هم سرې په سوال غواړي

په اوښکو نۀ مري اے زما ساده باده پښتنو
اور د کابل یو زیګ باران د پشکال غواړي

نۀ ماله لا شپږ کلیمې نۀ راځي
زۀ ایله پرون مسلمان شوے یم

شیخه کلیمه به په پښتو کښې ویم
شیخه زۀ پښتون مسلمان شوے یم

دا زنـدګي مـې نـوره نـۀ ده خوښـه
یـار غلامـي مـې نـوره نـۀ ده خوښـه

تـا پکښـې ذکـر د شرابـو کـړے
سـتا شـاعري مـې نـوره نـۀ ده خوښـه

مـلا وې تنـګ شـومه د دغـې خلقـو
امـامتي مـې نـوره نـۀ ده خوښـه

سرے د ژونـد پـه خـوږو پوهـه نـۀ کـړي
مسـافري مـې نـوره نـۀ ده خوښـه

راځۍ چې بیا یۀ بـل لـه غـاړې ورکـړو
دا ځـان ځـاني مـې نـوره نـۀ ده خوښـه

دا سپوږمۍ او نمر زما خبرې کئ
څومره په هنر زما خبرې کئ

دا جینۍ په ما جوړې مئینه ده
مور ته مې اکثر زما خبرې کئ

نن مې په ملا باندې شراب څښلي
نن به په ممبر زما خبرې کئ

دا سړے زما نه متاثره دے
دے په لر او بر زما خبرې کئ

ماله خدائے څواني داسې راکړې چې
پېغلې په ګودر زما خبرې کئ

نهٔ يې څښم خو وه يې څښم
سم لکه اوبه يې څښم

ښهٔ په دې پوهېږمه
ښهٔ نهٔ دي خو ښهٔ يې څښم
تهٔ نهٔ څښې په تا نهٔ څښم
دے يې څښې په ده يې څښم
ستا په دې کښې څهٔ کار دے
تهٔ يې څښې که زهٔ يې څښم
تا دې الله نهٔ وژني
ستا په ژوندانه يې څښم
څهٔ بلها تراخه دي خو
څه خوارهٔ خوارهٔ يې څښم

توقي نهٔ دي شعر ليکل
وينې دي د زړهٔ يې څښم

دلته انسان نشته نو دلته رڼا ځکه نشته
دلته انسان نشته نو دلته به بلا هم نۀ وي

چرته چې جرم نۀ وي هلته سزا ښۀ سخته وي
چرته چې جرم ډېر وي هلته به سزا هم نۀ وي

ښکلیه نزدې مه راځه هسې نۀ دا زړۀ مې ورک شي
ما به شک وخوري او په تا کښې به څه غلا هم نۀ وي

دا زورور چې د کمزورو په سرونو خیژي
دے که راپرېوتو نو بیا به پکښې ساه هم نۀ وي

دغه لږ پاتې دي دروایخله ساقي چاته دې
اوس که منېر راغے نو بیا به ګورے دا هم نۀ وي

دنګ لوړ په قدقامت لکه چنار یؤ سړے
راتلو به روزانه په دغې لار یؤ سړے

د هاړ په سره غرمه کښې به د توت سیوري ته ناست وؤ
والله چې تق چولے انتظار یؤ سړے

اکثر به یې په پړي باندې کاني ورول
خوړلے چرته یو وارې وؤ مار یؤ سړے

وئیل یې زندګي خو دا د کلي زندګي ده
تر کلي چا راوستے وؤ د ښار یؤ سړے

څه کنه اے ما پله چشمان راواړوه
ما باندې د غر هومره احسان راواړوه

څه کنه لمدو زلفو له څنډ ورکه جانانه
څه کنه يو څو څاڅکي باران راواړوه

خدايه بې ګناه قتلونه يې ډېر وکړه
خدايه د دې ظلم نه انسان راواړوه

نور د فرِقو په حق کښې نه يمه
نور د فرِقو نه دا مليان راواړوه

تا چې ورته لار د مېخانې ښوده
ورشه کنه اوس دا منير جان راواړوه

کله کله څکي سرے
غم غلطوي سرے

څه عجیبه زړه لري
دغه شرابي سرے

غم چې په چا زور وکړي
بنگ لوگے کوي سرے

خبر دے اشنا کـه پـه مـا تـا پسـې خـبرې کـوي
دا دنیـا ټولـه پـه دنیـا پسـې خـبرې کـوي

خلـق دروغ وائي سـاده جانانـه مـۀ یـې منـه
مجنـون بـه څنګـه پـه لـیلا پسـې خـبرې کـوي

ملا زما سره په یو جام کښې شراب وڅښې خو
چې په ممبر کیښني په ما پسې خبرې کوي

د ښکلو دا عادت مې خدائیګو چې بیخي نۀ دے خوښ
سرے مئین هم کړي او بیا پسې خبرې کوي

بس دغه خلق دي نور خپل مونځونه بئیل بئیل کوي
دا چې کوم خلق په ملا پسې خبرې کوي

یاران چې روغ دي د یو بل په صفت نۀ مړیږي
چې کله بئیل شي خامخا پسې خبرې کوي

زۀ یې منمه نۀ منیره زۀ تا پیژنمه
خلق که هر څومره په تا پسې خبرې کوي

خلق مې چېرې وائي تا څه څښلي
ما د لېونو بنګو اوبه څښلي

ستا د اننګو خوله مې زهر شوه
ما په دغه پرخه کښې رانجه څښلي

مونږ که ګنهګار یو خو د یو بل یو
ما باندې هغه ما په هغه څښلي

ګډې وډې وایمه او خاندمه
مور مې راته وئ څویه تا څه څښلي؟

دوي فرښتې غونډې انسان ته هم کافر وئیلې
مړه دې خلقو باچا خان ته هم کافر وئیلې

مړه نو ته به هم ایمان تیروې خدائے له به څې
مړه نو تا یؤ مسلمان ته هم کافر وئیلې

زهٔ د بابا په نظریه باندې ښهٔ کلک ولاړ یم
زهٔ یې په لار یم چو ما ځان ته هم کافر وئیلې

آ یؤ منصور د انا الحق نعرې په دار وخېژؤ
دې بل منصور خو لا جانان ته هم کافر وئیلې

چې تهٔ وې نهٔ وهٔ خو چې تهٔ لاړې په شړق باران شهٔ
بس ما په هغه ورځ باران ته هم کافر وئیلې

راځه دا خلق په جیبونو کښې فتوې ګرځوي
راځه دې خلقو منیر جان ته هم کافر وئیلې

چې په دې دور کښې زما د معيار خلق نشته
يا زه بې کاره يم اشنا يا د کار خلق نشته

زما وطنه تهٔ د ډېرو ښائيستونو ډک يې
زما وطنه خو بس ستا د سنګار خلق نشته

زما هم څو رقیبان دي څو هندوان دي
په جینی باندې پیریان دي څو هندوان دي

په ما ګران دي زۀ پرې ګران یم په ما ګرانه
ستا غمونه مې یاران دي څو هندوان دي

د پردو زړونو نه سمه حیا اخلي
ښکلي بیا هم په مونږ ګران دي څو هندوان دي

تۀ بیخي د دوي په شانې مسلمان یې
دوي هم بلکل ستا په شان دي څو هندوان دي

دا یاران نۀ دي ماران دي دا به یې وخوري
د منیر سره روان دي څو هندوان دي

لږې شان مستۍ ته دې پرې نهٔ ښودم
بس خو غریبۍ ته دې پرې نهٔ ښودم

اے نو دا خانې به درله زهر کړم
اے که غریبۍ ته دې پرې نهٔ ښودم

ښه ده د ایمانه خلاصېدمه خو
ښهٔ ده چې مستۍ ته دې پرې نهٔ ښودم

ځان باندې دې نِش نمګړې تېرې کړې
پلاره مزدورۍ ته دې پرې نهٔ ښودم

## یؤ شعر

یؤ وخت وهٔ ماته چا سلام نهٔ کوو
یؤ وخت دے زه د چا پروا نهٔ ساتم

په غېږو غېږو خلقو به یې وړې وړې خبرې خرڅولې
د کلي یوۀ ماشوم ښار کښې ګورګورې خرڅولې

ما وې زما بچي به یې چرته جنګ له استعمال کړي
ما ځکه د بابا د وختو زغرې خرڅولې

د دې قام په ذهنونو باندې یې ځکه اثر نۀ کۀ
د دې قام سندر غاړو به سندرې خرڅولې

نۀ نۀ دې ته سوال مه وایه نۀ نۀ هغې سوال نۀ کۀ
هغې خو خپلې اوښکې ملغلرې خرڅولې

منیره په والله چې د دولت ارمان یې راویست
کافرې اداګانې یۀ کافرې خرڅولې

يوځ تنهائي بل انتظار دے تېـق يې وچولم
مره دا څه زړۀ چاودے کار دے تېق يې وچولم

ځان راته ډېر پردے پردے ښکاري بې څوکه ښکاري
پردے مزدور يم پردے ښار دے تېق يې وچولم

پخپله څۀ ما هم د ځان سره په غرونو ګرځئ
تا چې به وئيل منير وزګار دے تېق يې وچولم

څنګه به وختونه زړهٔ نادانه تیروو
دا ځلې سپرلے به بې جانانه تیروو

مهٔ راځه سپرلیه چې جانان درسره نهٔ راځي
اوښکې به د خپل سیرې ګریوانه تیروو

نهٔ به ګورو زړهٔ نور به د چا سترګو ته نهٔ ګورو
غلے به نظر نور د هر چانه تیروو

ژوند د جدائی منیره ګوټ د ترخو زهرو دے
دا د زهرو ګوټ به ډېر په ګرانه تیروو

دا مـړه مـړه مـهٔ کـوه اے مـړې لیـونی
دا زړهٔ دې رالـه سـتړے کـړهٔ زړهٔ سـتړې لیـونی

د پـوزې مېخکـې کښـې دې غمـے دے لېـونے
د غـاړې پـه امیـل کښـې دې مشـکنې لېـونی

پـه تـا پسـې د غرونـو پـه لمنـو بانـدې گرځـې
تـهٔ څـومره خـوش نصـیبه یـې کرکنـړې لېـونی

یؤ دوه زره ګیلې خو پکښې ستا نه هم پرتې دي
دا زړهٔ پـه منیـر جـان څلـه راسـپړې لېـونی

وهـــو ډغــره پـــه نشـــه کښــې یمـــه
نـــړوم دې غــره پـــه نشـــه کښــې یمـــه

زهٔ مـــازیګر تـــه انتظـــار چرتـــه کـــوم
زهٔ د ســـحره پـــه نشـــه کښــې یمـــه

غریبـــی وې پـــه تـــا بـــه سر ګرځـــووم
وه مســـافره پـــه نشـــه کښــې یمـــه

یـــه محترمـــه پـــه څـــوانی کښـې یمـــه
وه معتـــبره پـــه نشـــه کښــې یمـــه

زهٔ خـــو اکـــثره ســـپینې ســـپینې وایـــم
زهٔ خـــو اکـــثره پـــه نشـــه کښــې یمـــه

صیبه که ستا ماته ضرورت نشته
پیره زما تاته ضرورت نشته

ښۀ نو لکه تۀ به یې جنازه وکړې
ښۀ لکه ملا ته ضرورت نشته

ځۀ بچیه سکول ته هډو لاړ نۀ شې
ځۀ چې ستا رڼا ته ضرورت نشته

مړه د دې دور انسان هر افت
مړه هیڅ بلا ته ضرورت نشته

صـــبب چـــې د چـــا سره روپـــی ډېـــرې دي
صـــبب د هغـــې خلقـــو خپلـــوی ډېـــرې دي

خـــاني يـــوه باچـــا خـــاني پكـــار ده
نـــورې پـــه سر بانـــدې خـــانی ډېـــرې دي

نـــن بـــه مـــې ســـتا يادونـــه نـــۀ تنگـــوي
مـــاسره نـــن د خـــوب گـــولی ډېـــرې دي

د زمكـــې نمـــر ورتـــه مـــخ نـــۀ راړوي
گنـــي پـــه زمكـــه هـــم ســـپوږمی ډېـــرې دي

د يـــارانې پـــه غـــم ځـــان نـــۀ اړوي
د منيـــر خپلـــې غـــم ښـــادی ډېـــرې دي

چې ستا نه بئیل شۀ نۀ مرید دے او نۀ پیر دے منیر
هسې یۀ بوت پاتې دے هسې یۀ تصویر دے منیر

زما د خلې نه یې یوه سندره څۀ واورېده
ملا په لاره ځي هر چاته وئ کافر دے منیر

څۀ د خوږو خوږو لفظونو نه تصویر جوړوي
داسې شاعر دے منیر داسې موصوّیر دے منیر

درز د دهماکې اورې که نه اورې
چغې او سورې اورې که نه اورې

برغې جنازې د کوره اووتې
کریکې د بې بې اورې که نه اورې

ما به وې غوړونه راله یې وخوړو
تا به راته وې اورې که نه اورې

خدایه نو دا چغې خو دا غرونه شلئ
خدایه دا خبرې اورې که نه اورې

زړهٔ په کنبې جوړ تق د غمه اوچاودهٔ
شور مې د سینې اورې که نه اورې

ما پسې یې تورې تبې کینبودې
اوس به مې نارې اورې که نه اورې

واورو وهلــــــے اور تـــــه غـــــاړې وتـــــو
مســـافر راغـــــے مــــور تــــه غــــاړې وتــــو

يــؤ ورور د ورور پــه خوشــحالۍ کښــې نــۀ وۀ
يــؤ ورور پــه غــم کښــې ورور تــه غــاړې وتــو

پــه محلونـــو بانـــدې يـــې وس نـــۀ رسي
بـــاران د خـــاورو کـــور تـــه غـــاړې وتـــو

خدايـــه نـــو څـــۀ عجيبـــه ويـــش دې کـــړے
يـــؤ يوســـف مخـــے تـــور تـــه غـــاړې وتـــو

پښـــتون پـــه خپـــل مـــرګ احتجـــاج ونـــۀ کـــړۀ
لکـــه پـــوخ فصـــل لـــور تـــه غـــاړې وتـــو

منيـــر جـــو ډيـــر دې خاموشـــۍ ســـتړے کـــړه
منيـــر جـــو ځکـــه شـــور تـــه غـــاړې وتـــو

زمـا هغــه خوښــه ده زۀ د هغــې نــۀ يــم خــوښ
که مې پېسه خوښه ده خو د پېسې نۀ يم خوښ

چـــې وار زمـــا شي قحـــط ســـالي راشي
چې د ساقي نۀ يم خوښ کـه د نشې نۀ يم خوښ

زمـا پـه سر پـه کـور کښې کـئ روزانـه جنګونـه
يـا د دادا نـۀ يـم خـوښ يـا د بې بې نـۀ يم خـوښ

چې د حجرې خوښ ووم نو حجره مې نۀ وه خوښه
وس مې حجره خوښه ده وس د حجرې نۀ يم خوښ

کــه پــه مــا تنــدر لګــي نــو زۀ پــرې توپــه لــږم
زمــا دا نــۀ ده خوښــه جــو زۀ د دې نــۀ يــم خــوښ

ګورمه چې چا چا مينه کړې ده
ماسره رښتيا چا مينه کړې ده

نن يوې ماشومې خپل بابا ته وې
تاسره بابا چا مينه کړې ده؟

هغه چې منصور پکښې په دار ختے
هغه رنګې بيا چا مينه کړې ده؟

ياره په ايمان وايه چې تا سره
ما نه هم سيوا چا مينه کړې ده؟

زمـا د خـان او د مـلا سره پـه څـۀ نـۀ لګـي
د دوي غریـب سړے پـه سترګو بانـدې ښـۀ نـۀ لګـي

پېغلو لاس مې په سرو وینو باندې سرۀ خوښ وي خو
د ځلمـو لاس مـې پـه نکریـزو بانـدې سرۀ نـۀ لګـي

وئیـل یـې مـا د زړه نـه اوباسـه نـو هـیڅ هـم نشـته
جانانـه بیـا بـه دې پـه اوښـکو کښـې بانـه نـۀ لګـي

سـتا د محفـل نـه مـې لـه دغـې وجـې منـع کـړې
زمـا خـبرې داسـې دي کـه پـه چـا وه نـۀ لګـي

څـوک چـې منیـره د رښـتیا اوریـدو تـوان نـۀ لـري
زمـا شـعرونه بـه پـه هغـې چـا خـوارۀ نـۀ لګـي

تا نه زمونږ کلي کښې شپه نۀ کېږي
مانه هم لاره کښې قیصه نۀ کېږي

ما وئیل شپې له چرته راشه کنه
نو په خندا شوه وې یې نۀ نۀ کېږي

سزا د جرم دې مجرم له ورکړي
خو فیصله دې په سوره نۀ کېږي

د مذهبونو عقیدو بئیل والے
ګلې زما او ستا رشته نۀ کېږي

چې په تالی پسې تالی نۀ راکئ
زما نه دغسې نشه نۀ کېږي

چې مې څۀ دے نۀ، څه یې یمه نۀ نو
د منیر جانه مې ګیله نۀ کیږي

یو مې ډېر شور بل مې دا ډېره خاموشي وژني
ستا دا یادونه سرخوړلي مې بېخي وژني

دا رڼاګانې یې په سترګو باندې ښې نه لګي
دلته څوک دے مړه د شپې وورورکي وژني

دا د غربت ترخې سپېرې نورې نه شي زغمے
دلته یو کونډه لېونۍ شوه خپل بچي وژني

دومره مې څښلي که په دې حال کښې مې پلار ولیدم
دا میخانه په بله اړوي ساقي وژني

تا به د کلي دا بې ما مازیګري اووژني
ما درنه یار د پردي ښار مسافري وژني

دے چې پـه تپـه زمـا راویښ نـهٔ شـهٔ
دا سـړے بـه مـړ وي دے اوده نـهٔ دے

تـا پسـې ونـه چـاؤدو نـو ځکـه وېـم
کـانړے دے پـه دې سـینه کښـې زړهٔ نـهٔ دے

ښـکلو منیـر سـاه اخـلي ژونـدے دے خـو
ښـکلو خـو بـس دومـره ده چې ښـهٔ نـهٔ دے

چې مونځ د مازیګر وشي د پورې غره لمن ته
رباب مـنګے بـه اخلمـه سـندرو لـه ځـم ښـهٔ

سحر چې بـه د کوره راوتـه نو دا بـه یې اوې
بې بې زهٔ د منیـر سره ګورګـورو لـه ځـم ښـهٔ

دا لیونی زما د زړهٔ د کوره نهٔ شي وتے
پښتنه پېغله ده بیخي سرتوره نهٔ شي وتے

ما وې ګورګورې تورې شوې دې نو مور یې وئیل
منېره دا اوس لویه شوې نوره نهٔ شي وتے



مونږه د کوره د مانځهٔ په نیت راوتي وو خو
ساقي په لاره کښې ولاړ وهٔ شیطان بد ځائے ګېر کړو

ما وئیل پاتې شه باران به شي لامده به مو کړي
تا زما نهٔ منل جانانه باران بد ځائے ګېر کړو

ژوند لکه زما کوه
هر چاته خندا کوه

دغسې نیت سپین ساته
دغسې رڼا کوه

مرګه مسافر یمه
مرګه لګه ساه کوه

ستا ارمان به سر نۀ خوري
مورې ته دعا کوه

زړۀ چې مئینېږي نو
ماسره سلا کوه

نن جوړې بیا مالګې زما د زړهٔ پرهر له راوړي
پنډ د غمونو جانان تل زمونږه سر له راوړي

وار خطا نهٔ یم هغه دومره بې وعدې خو نهٔ دے
جانان چې هر ځائے وي دیدن به مازیګر له راوړي

په دهماکه کښې د یوٴ مړ ورور خور په دې طمع ده
چې مې لالا راځي نکریزې به اختر له راوړي

هغه په ځان باندې مئین دے په مخ داغ نهٔ پرېږدي
خپل وطن پاک ساتي لوګي ټول پېښور له راوړي

مودې شوې تېرې خو د خپل عادت نه وانهٔ وړیده
لېونۍ هغسې لا غبرګ منګي ګودر له راوړي

وې یې منیره زهٔ د نوؤ جامو نهٔ یم عادت
ګنې ټوکمار روزانه ټوکي زمونږ ور له راوړي

د چا نه نهٔ یم خفه
جانانه نهٔ یم خفه

تهٔ ځان له زړهٔ ولې خورې
زهٔ ستا نه نهٔ یم خفه

که خدائے پوره نهٔ کړې نو
ارمانه نهٔ یم خفه

زهٔ د ملا نه تنګ یم
د خانه نهٔ یم خفه

وينې ته اوبه وايه که ژوند کوې
سپينې سپينې مه وايه که ژوند کوې

کفر ته د سره کفر مه وايه
مړي ته اوده وايه که ژوند کوې

سپي ته ازمرے کارغه ته باز وايه
سپکو ته درانه وايه که ژوند کوې

دلته ژوند په لوئے منافقت کيږي
زهرو ته خواږه وايه که ژوند کوې

يه منيره ځان بې نيتې مه وژنه
بدو ته مې ښه وايه که ژوند کوې

ضروري نـــهٔ ده چـــې پـــه جـــار دې وشي
خـــو دومـــره وايـــم چـــې اظهـــار دې وشي

راشـــه زمـــا پـــه وينـــو شـــونډې سرې کـــړه
راشـــه جانانـــه چـــې ســـينګار دې وشي

مـــلا پـــه بنګـــو شـــونډې مـــه تـــوروه
يـــؤ جـــام شراب وڅښـــه چـــې کـــار دې وشي

چينې شوې اوچې چنارونه يې له کاره ويسته
د نورو ونو سېوري يې هم له انتظاره ويسته

هغو خدائے خبر دے څۀ داسې ګناه کړې چې
د چا په کلي کښې خوښ نۀ وۀ چا د ښاره ويسته

دا يې منم چې په سازونو کښې يې مستي پيدا کړه
خو دومره ده چې د سندر غاړي يې د معياره ويسته

د خدائے دپاره اشنا نورې سترګې مه توروه
زمونږ د کلي لوئے واړه دې له روزګاره ويسته

د منير جان د خلې نه وتې ليوني غزله
والله لوګي دې د رباب د هره تاره ويسته

سپوږمۍ مسکۍ شوله چې نمر وخاندل
غانټولو چړق وهل سحر وخاندل

ما د جانان په غېږ کښې سر کېښودو
پېزوان د سرو شونډو په سر وخاندل

چې به مې ستا ښائست ته سم وکاتۀ
ما به په ځان پورې اکثر وخاندل

زۀ به په هغه ورځ اتڼ کوومه
په کومه ورځ چې پېښور وخاندل

د کمزورو خلقو زور مه ګوره خانه
دا ایرې مهٔ چېړه اور مه ګوره خانه

دا ژوندے زړهٔ مې مړې مړې ساګانې اخلي
داسې مړهٔ مړهٔ راته نور مهٔ ګوره خانه

په والله چې ډېر درانه دي چاته یې وې
پښتانه خو پښتانه دي چاته یې وې

دا کوم عکس چې ورله ما او تا جوړ کړے
نهٔ نهٔ داسې ګورے نهٔ دي چاته یې وې

پښتانه د لر او بر پرې ورک مئین دي
په منیر کښې داسې څهٔ دي چاته یې وې

تهٔ خو مې اوس په کاڼو ولې لېونے مې ګڼې
زهٔ خو د مخکښې نه روغ نهٔ ووم لېونے ووم اشنا

زهٔ خو په تا باندې مئین د هغې وخت نه یمه
چې لا ماشوم ووم ستا د لوبو ووم تنکے ووم اشنا

لا طبیبان به مې د زړهٔ په مرض اوس پوهېږي
زهٔ چې په ښهٔ او بد پوهېدم په زړهٔ سوړے ووم اشنا

دا خو تهٔ اوس هر چاته وائې منېر نهٔ سړے دے
چې ستا رضا به مې کوله نو سړے ووم اشنا

نـــن عـــام دے واخلـــه
حـــرام دے واخلـــه

کـــه زړهٔ دې کېـــږي
ډک جـــام دے واخلـــه

ســـحر بـــه ګـــورو
ماښـــام دے واخلـــه

پـــه تـــا خـــو حـــد هـــم
تمـــام دے واخلـــه

دا زړهٔ مـــې ســـتا شـــهٔ
انعـــام دے واخلـــه

د پښـــــتون سر خـــــو
نـــــیلام دے واخلــــــه

دا پښـــــــــــتونخوا ده
یـــؤ ګـــام دے واخلــــه

زمـــا واکـــــدار خـــــو
غـــــلام دے واخلـــــــه

زمـــا پـــــه سر چـــــې
الـــــزام دے واخلـــــــه

هنـــدو خـــو نـــهٔ یـــې
ســـــلام دے واخلـــــــه

منیـــــر خـــــو هســـــې
بـــــدنام دے واخلـــــــه

د تورې ډال نیزې او زغرې سرے نۀ دے پاتې
په پښتنو کښې د خبرې سرے نۀ دے پاتې

دلته چې هر سړے راځي د بدامنۍ قیصې کړي
دلته د امن د سندرې سړے نۀ دے پاتې

منم چې لوئے ولي وې او لوئے پیر وې باچاخانه
د خلقو په نظر کښې خو کافِر وې باچا خانه

تۀ خان وې تۀ جانان وې او د ټول پښتونستان وې
خو بیا هم یۀ ملنګ وې یۀ فقیر وې باچاخانه

د مړ خمار سره یې بیخي نۀ لګي
د انتظار سره یې بیخي نۀ لګي

اوږدې قیصې یې بیخي نۀ وي خوښې
د اوږدې لار سره یې بیخي نۀ لګي

د دې چینې اوبۀ پرې خوږې لګي خو
د دې چنار سره یې بیخي نۀ لګي

چا چې په مینه وي ایمان راوړے
د بل روزګار سره یې بیخي نۀ لګي

منیر خو ټول عمر یاران وساتل
جوړې د مار سره یې بیخي نۀ لګي

زۀ د هیچا پــه کــار کښــې کــار نــۀ لــرم
زمـا پــه کــار کښــې دې خــوک کــار نــۀ ســاتي

مینــــه بیخـــي د محتـــاجۍ نـــه وتـــې
اوس خلـــق یـــار ســـاتي رېبـــار نـــۀ ســـاتي

صـــیبه چـــې چـــا سره پېســـه نشـــته دے
وائي د ژونـــــد هـــــډو مـــــزه نشـــــته دے

شـــیخه نـــن تـــاسره تســـپې نشـــته دے
شـــیخه نـــن مـــاسره نشـــه نشـــته دے

د خپل وجود د هر اندامه توبې اوباسمه
نۀ جام له ما نۀ زۀ د جامه توبې اوباسمه

پرېږده چې نن په ځان حرام کړمه شراب د جنت
پرېږده چې نن درنه مابښامه توبې اوباسمه

چې په اختر کښې چرته سوات ته ځم او ښکلي وینم
نو د بونېر نه تر کالامه توبې اوباسمه

سمه قافيه مخې له نۀ راځي
ساز شته خو تپه مخې له نۀ راځي

زۀ د ائينې مخې له نۀ ورځم
ماله ائينه مخې له نۀ راځي

اوس مې په هغې لارو تګ پرېښے دے
اوس پکښې هغه مخې له نۀ راځي

نۀ نۀ دومره سم مسلمان هم نۀ يم
مړه خو نشه مخې له نۀ راځي

ستا په لاسو کښې تسپې دي او ښې دي
زما لاسو کښې نشه ده جو ښهٔ ده

ستا په ګوتو کښې قلم دے او سم دے
زما لاسو کښې بېلچه ده جو ښهٔ ده

کرښې یې رابښکلي جوړ یې نهٔ کړهٔ په دیوال ګلونه
ګوتې یې سورې شوې جوړ یې نهٔ کړه په رومال ګلونه

سپرلیه ډېر دي بې وعدې او بې اعتباره کړمه
چا رانه غوښتي تورو زلفو له په سوال ګلونه

تــا تــه کــه د خپـل حسـن مشـال غونـدې د شـپې بلېـږي
ماتـــه هـــم خپلـــې رڼـــې اوښـــکې پښـــتنې بلېـــږي

زمــا پــه ســوي رنــګ جانانــه چرتــه زړهٔ اونــهٔ خــورې
که رنګ مې تور دے خو په زړهٔ کښې مې ډیـوې بلېـږې

منافقــان وو خــو د دې خلقــو نــه ډېــر غــوره وو
هغــوي بتــان راوړل جــمات تــه دوي بمــان راوړي

تا د اسلام تصویر په داسې رنګ کښې رنګ کــړو صـبـه
که خـوک ایمـان راوړي والله کـه اوس ایمـان راوړي

هغه سرې نن ماته په تندي لاسونه ږدي
زما چې به تر اوسه چا سلام نۀ اخستو

غربته كه ستا نخښې مې په مخ نۀ ښكارېدې
ساقي به مې چرې د دلاسه جام نۀ اخستو

زما كه ستا د مينې د توهين څۀ اراده وے
نو ما به دې په سر باندې الزام نۀ اخستو

اے تۀ دا ماسره اوس تر كابله ولې ګرځې
اے تا خو به زما سره يو ګام نۀ اخستو

څهٔ بې تاجه بادشاهي د لېونو ده
څهٔ بې غمه زندګي د لېونو ده

چې تپوس ترې د ثواب او ګناه نشته
څه ویړیا مسلماني د لېونو ده

چې د مینې او جانانه خبر نهٔ دي
بس یوۀ دغه ناپوهي د لېونو ده

چې په ځان او په جهان یې څه کار نهٔ وي
ښهٔ بې داؤه جواري د لېونو ده

ټول ترې تاؤ وي او سندرې ترې نه اوري
د منیر سره یاري د لېونو ده

څني ارمانونو ته تيلې وهه
بعضې تصويرونو ته تيلې وهه

ذکر د بابا چې پکښې نهٔ وي نو
داسې نصابونو ته تيلې وهه

دا پښتانهٔ ډېر جنازو سترې کړه
نور د دوي لاشونو ته تيلې وهه

هلته چې ولې شته د شرابو نو
دلته دې جامونو ته تيلې وهه

پلار مې وې بچے چې زهٔ ژوندے يمه
مور مې وې غمونو ته تيلې وهه

کفر ته چې چا کفر وئیلے دے
سر اکثر هغې سرې خوړلے دے

دلته خو چې ښکلے وي بدرنګه وي
دلته خو بدرنګه سړے ښکلے دے

دلته که رښتیا وائي نو زر به مري
ځکه خو دا یؤ نیم سړے غلے دے

پریږده چې په کانو باندې یې اوولم
دا د یؤ مغروره سړي خلے دے

خلق خپلې فاصلې وهي لګیا دي
پښتانه یوٙ بل له ښېې وهي لګیا دي

خدایه ښکلے باران وکړې موسم یخ کړې
پېغلې ځانته لوپټې وهي لګیا دي

هغه مونږ ته چې یې وې شراب حرام دي
هغه خلق خو کاسې وهي لګیا دي

ستاسو ښار دے خو سنګار د چا په سر دے
پښتانه پکښې بېلچې وهي لګیا دي

منیر جانه لېونیه ته یې نهٔ اورې
لېوني درته نعرې وهي لګیا دي

نـۀ زمکـه واچـوؤده نـۀ اسـمان تـوتې تـوتې شـۀ
بيـا دهماکـه وشـوه او بيـا انسـان تـوتې تـوتې شـۀ

دلتــــه د پېغلــــې لوپټــــه والوتلــــه
هلته يؤ درز وشو يؤ ښکلے ځوان تـوتې تـوتې شـۀ

کـم عقلـې مـا نـه بـه دې زړۀ پـه رښـتيا اوغورځـوو
تا به له قصده وې چې وى پېزوان توتې تـوتې شـۀ

رس د انګورو کېږي
ذکر د حورو کېږي

د توپک جنګ څۀ جنګ وي
جنګ خو په تورو کېږي

خدایه د ده سره حساب مۀ کوې
دا مسافر د ډېرې سترې مړ دے

یۀ ماشومې وئیل بابا مې څه شۀ
مور یې له قهره وئیل مړې مړ دے

لکـه د دهٔ لکـه زمـا بـه درنـه ژبـه پرېکـړي
نـن رښـتـيا اوايـه سـبا بـه درنـه ژبـه پرېکـړي

مهٔ وايـه نهٔ لګي پـه دې خلقـو دا سـپينې سـپينې
يا بـه دې سر غوڅ کړي او يا بـه درنـه ژبـه پرېکړي

کـه درتـه يؤ شو نو منصور غونډې دې دار تـه رسئ
دغـه قاضـي دغـه مـلا بـه درنـه ژبـه پرېکـړي

کـه دې د دې وخـت پـه سـرکار ګوتـه اوچتـه کـړلـه
اے نو د دې وخـت دا باچـا بـه درنـه ژبـه پرېکـړي

منيـر تـه وايـه دا رښـتيا دې پـه چـا ښـهٔ نـهٔ لګي
منيـر تـه وايـه دا رښـتيا بـه درنـه ژبـه پرېکـړي

## نظم

پرون د کلي د خوا غره لمن کښې
په سوړ سحر او لیونی یخنی کښې
ما یوؤ ماشوم لخته په لاس ولیدو
ډېر په تادی ورله نزدې ورغلم
ما ویل بچیه دلته څۀ کوې تۀ
وئیل یې کاکا زما چیلۍ ورکې دي
یخنې مې کېږي رانه ښپې ورکې دي
غوږونه یې هم یخنی سرۀ کړي شان وو
بیا یې په وړه نازکه خله غلي شان
وئیل یې کاکا یوؤ څادرګے به نۀ وي؟
دغه خبره یې زما په زړګي
لکه د تندر غونډې پرېوتله

ستـرګي مـې هـم د اوښـکو ډکـې شـولې
زر مـې د سره خپـل څـادر راکـوز کـړۀ
هغـه ماشـوم مـې پکښـې ونغښـتو سـم
چـې نمـر راوښـتو ماشـوم ګـرم شـۀ
وئيـل يـې کاکـا څـم چـې چيلـئ وګـورم
رانـه راوان شـۀ پـه تلـو تلـو کښـې يـې وئيـل
کاکـا کـه بيـا زمـونږ پـه لار تيرېـدې
مالـه يـوۀ زوړ پـالتو څـادر راوړه
دا ماشـوم هـم د چـا بچـے وۀ کنـه
دا چـې سـحر کښـې پـه چيلـو پسـې تلـو
نـازکو ګوتـو لـه يـې قلـم پکـار وۀ
دۀ لـه د علـم هـم څـۀ غـم پکـار وۀ

دے بـه د غـره پـه سر کښـې څـۀ زده کـوي
دے چـې نـامې د بوټـو نـۀ ذده کـوي
زمـا د قـام دغـه پښـتون بچـے بـه
چـې د تعلـيم نـه نـاخبره لـوئے شي
دے بـه پـه نـۀ خـبره شر هـم کـوي
خـو دے بـه سبا لـه ترهګـر جـوړېږي

زۀ دا منم چې دے بې پلاره او بې موره نۀ دے
کور هم لري د غره لمنې ته بې کوره نۀ دے

خو دغه ګل او ګلالے ماشوم چې
سحر روان شي د غره سر ته خیژي

د دۀ د کلي او د کل ماشومان
بستې په غاړه کړي او سکول ته لاړ شي

د دۀ زړه نشته ولې دے به څۀ ارمان نه کري؟
دے چې د زمکې په سر ګرځي نو اسمان نۀ لري؟

د ګل نه یؤ په دوه ښائسته ده
د سپوږمۍ خور ده خو سپېره ده
په دنیاوي دوزخ دېره ده
ژاړې به نۀ مور یې مړه ده
جینۍ یواځې د تول کور کوي کارونه

## نظم

حجر اسود مې ښکل کړۀ
د حسن حد مې ښکل کړۀ
زۀ شنې روضې له لاړم
اے شين ګنبد مې ښکل کړۀ

لا چــــي لونګـــــه لاړم
خبـــر یـــې ښنګــه لاړم؟
بغیــــــر احرامـــــه لاړم
بغیـــر لـــه لنګـــه لاړم
چـا وئیـــل پیـــر شـــوې لاړې
چـــا وې کـــافر شـــوې لاړې
چـــــا وې دروغ دي اووې
چـــا وې رښـــتیا دي اووې

مـــا وئیـــل خـــوب مـــې لیدهٔ
خلـــق حیـــران پـــاتې شـــو
وې عجیبــــــه قیصــــه وه
دا خــــو خــــوږه قیصـــه وه
څـــومره پـــه لنـــډه یـــې وکـــړه
څـــــومره اوږده قیصـــــه وه

بس زۀ راپاسېدمه
هغه محفل مې پرېښود
رو شان مې ځان سره وې
منیر که پیر نۀ دے خو
منیر کافر هم نۀ دے

لاچي لونګه خوښ مې نۀ شوې
یه غنم رنګه خوښ مې نۀ شوې
یاره بې ننګه خوښ مې نۀ شوې
د تورو جنګه خوښ مې نۀ شوې
د سترګو جنګه تا به ټول عمر کوومه

## نظم

د هـــوائي ډزو شـــوقينه يــــاره
ستـا د ټوپـک د خلـې نـه وتـې ګـولۍ
پـه يـو مـزدور بانـدې راپرېوتلـه
د يـوې پېغلـې لوپټـه يـې يـوړه
د يـو ماشـوم د سـر شـمله يـې يوړه
د يوې مـور د سترګو تـور يې مړ کړو
د يو داجـي د زړه ټکـو ر يـې مـړ کـړو

يـه پـه ښـادۍ دې خـدائے اور پـورې کـه
پـه دې مسـتۍ دې خـدائے اور پـورې کـه

یه دا ځواني دې خدا ے په سیند لاهو که
په دې ځوانۍ دې خدا ے اور پورې که

ستا خوشحالي ده تۀ یې بې شکه وکه
خولـه ډېره لـه تهوپکـه وکـه
دا خوشـحالي دې پـه اتنهـو وکـه
دا خوشـحالي دې پـه ډولونـو وکـه
دا خوشـحالي دې پـه سـندرو وکـه
دا خوشـحالي دې پـه سـازونو وکـه

ځـان سـره نـور خلـق هـم وخنـدوه
سـپینه دا تـور خلـق هـم وخنـدوه
اے دغـه سـپور خلـق هـم وخنـدوه
اے دا سـرتور خلـق هـم وخنـدوه

دا چا کچه کورونه ولې ورانے
د انسانانو زړونه ولې ورانے
اے دا تنکي خیالونه ولې چېړې
اے دا تنکي خیالونه ولې ورانے

د دې ټوپک نه قلمونه جوړ که
له دې بارودو سیاحي جوړه که
دا کمر بند خود بستې پشان دے
د دې کارتوسو نه کاپي جوړه که

د دې پټکي نه دې شمله جوړه که
چرته جمات جوړ که حجره جوړه که
د پردو کریکو نه ساز مۀ جوړوه
خپل مازغه وچېړه نغمه جوړه که

د دې تو پک سره یاري مهٔ کوه
د تیارو غېږ کښې زندګي مهٔ کوه
په پردي سر داوونه مهٔ لګوه
دا جواري ده جواري مهٔ کوه

خو دا ویرونه په چا څهٔ اثر کړي
نصیحتونه په چا څهٔ اثر کړي
منیره ستا ځانله مازغه خراب دي
ستا دا شعرونه په چا څهٔ اثر کړي

ښۀ جامه او ښۀ پېزار دربانډې کېږي
د لعلونو کاروبار دربانډې کېږي
او د غرونو په سر لار دربانډې کېږي
مصنوعي شانتي سنګار دربانډې کېږي
خو
دولته څو څيزونه داسې هم شته
چې له تا نه زورور دي
او له تا نه معتبر دي
او له تا نه بختور دي

دا منمه چې خاني دربانډې کېږي
ډېر کارونه شېطاني دربانډې کېږي
دا وراني او وداني دربانډې کېږي
تر څۀ حده زندګي دربانډې کېږي

خو
دولته څو څیزونه داسې هم شته
چې له تا محتاجه نهٔ دي
او له ما محتاجه نهٔ دي
د هیچا محتاجه نهٔ دي

ستا منم ضرورت زیات دے
د بر عالم درته رامات دے
او چې تهٔ چا سره نهٔ یې
خلق وائي دے میرات دے
خو
دولته څو څیزونه داسې هم شته
چې ستا زور هډو مني نهٔ
سپین او تور هډو مني نهٔ
اوبه اور هډو مني نهٔ

که ته دومره زورور يې
که ته دومره معتبر يې
که ته دومره بختور يې

زۀ يو ګار خو راله وکړه
دا سنګار خو راله وکړه

دا پيري راله څواني که
راواپس مې زندګي که
موز او پلار راله ژوندي که
يو هندو خو جنتي که

خه دا کار نۀ شې کولے؟
دا سينګار نۀ شې کولے؟
د چا زړۀ کښې د چا زړه له
لږه لار نۀ شې کولے؟

نو بيا ته زورور نۀ يې
په هغه زورور نۀ يې
نو بيا تش د شکې بند يې
لکه اوبه زورور نۀ يې

چې په ما يې څۀ کار نشته
نو په تا يې څۀ کار نشته
په دروغو پسې نۀ ځې
په رښتيا يې څه کار نشته

منهر داسې ليونے دے
چې په چا يې څۀ کار نشته

ځه په نورو پسې ګرځه
په کمزورو پسې ګرځه
تر سپوږمۍ ختلې ياره
اوس په ستورو پسې ګرځه

آکـــه مـــري غلامـــي نـــۀ کـــې
نـــۀ بېخـــي غلامـــي نـــۀ کـــې
منیـــر ســـتړے وجـــود ګرځـــي
خـــو ذهنـــي غلامـــي نـــۀ کـــې

بـــې لـــه تانـــه بـــه تیرېـــږي
پـــه اســـانه بـــه تیرېـــږي
ژنـــدګي لکـــه هـــوا ده
او روانـــه بـــه تیریـــږي

د هغـــه زړه ســـمندر دے
هغـــه څـــۀ تـــه وار خطـــا دے
منیـــر ژونـــد تـــه نـــۀ ســـړیه
ژونـــد هغـــه تـــه وار خطـــا دے

ژوند خو څۀ د اوړي شپه ده
په نهره هم تېرېږي
په غریبو باندې ژمے
بې څادره هم تېرېږي

څۀ په روغو پسې ګرځه
په دروغو پسې ګرځه

دا انسان خو لېونے دے
په ایمان خو لېونے دے
دا د ځان نۀ دے سړیه
دا په ځان خو لېونے دے

منیر جان خو لېونے دے
منیر جان خو لېونے دے
منیر جان خو لېونے دے

## نظم

انسانانو لېونې کړم
شیطانانو لېونې کړم
د پیریانو سره ژوند دے
دې ملیانو لېونې کړم

په مذهب کښې مذهبونه
په مسلک کښې مسلکونه
په جومات کښې جلوسونه
په ممبر باندې جنګونه

د چا تور پګړے په سر دے
د چا سپين پګړے په سر دے
څوک سر تور سر ونه ګرځي
د چا شين پګړے په سر دے

په سندره مې کافر کړي
په خبره مې کافر کړي
چې د سوال جواب رانکړي
زر تر زره مې کافر کړي

دے بس دۀ ته کافر وائي
او دے دۀ ته کافر وائي
زړۀ وئ ذهن دې کافر دے
ذهن زړه ته کافر وائي

چې په دہ پسې پسې شم
کہ پہ دہ پسې پسې شم
چې د ذهن لاره واخلم
کہ پہ زړۀ پسې پسې شم

دے وئ دا عمل سنت دے
دے وئ نۀ منافقت دے
دے وئ دې پله دوزخ دے
دے وئ دې پله جنت دے

د یوې نۀ پاتې کېږو
د پیسې نۀ پاتې کېږو
مونږ په دې جهان هم ډوب یو
د هغې نۀ پاتې کېږو

نور د هر څۀ نه باغي یم
که هر څو جهنمي یم
تۀ مېخوار زۀ دې ساقي یم
زۀ دا نۀ چې فلسفي یم

زۀ د هر چا نه کمزورے
نۀ سپوږمۍ یم او نۀ ستورے
چې کیني راته څوک هم نۀ
یم د داسې ونې سیورے

اذانونه مو یؤ نۀ دي
اخترونه مو یؤ نۀ دي
که په یؤ صف کښې ولاړ یو
خو نیتونه مو یؤ نۀ دي

د روژې مسلمانان يو
د جمعې مسلمانان يو
په توبو مې دې توبه وي
بې مزې مسلمانان يو

د جوماتد دروازې نه
ترحجرې مسلمانان يو
امانت کښې خيانت کوُ
بې وعدې مسلمانان يو

په والله لېونے کېږم
په رښتيا لېونے کېږم
جوړې بيا مې مازغه دانګي
جوړې بيا لېونے کېږم

په نامه لاسونه کېږدم
کهٔ په زړهٔ لاسونه کېږدم
چې آمین په زوره اویم
که په خله لاسونه کېږدم

په یوه دې پوهه نهٔ کړو
په قیصه دې پوهه نهٔ کړو
ملا جانه لېونے شې
په تپه دې پوهه نهٔ کړو

زهٔ د چا نه نفرت نهٔ کوم
د دنیا نه نفرت نهٔ کوم
په انسان مې زړه خوږېږي
د انسانه نفرت نهٔ کوم

دا مې تول د سر ګلونه
د ملا نه نفرت نۀ کوم

خو بس
دا قیصه راله یوه کړئ
عقیده راله یوه کړئ
په قرآن لاسونه کېږدئ
کلیمه راله یوه کړئ

ځوک به د ځان ځوک به په ځان شي
ځوک به په یؤ دوه کښې حېران شي
اے خانده مۀ زړۀ به مې وران شي
خانان به بیا سره خانان شي
پکښې به توې شي د رامبېل چامبېل ګلونه

تۀ وائې لږ وار وکړه
زۀ وایم تلوار وکړه

پیره زۀ خراب یمه
پیره زما کار وکړه

زړۀ په خله راولمه
زر کوه اظهار وکړه

زړۀ چې په تا ظلم کئ
تۀ ورته ازار وکړه

ساه د چا په لاس کښې ده
ژوند په خپل اختیار وکړه

بنګړي د تیراه راوړۀ
شپېخه لر خمار وکړه

ښۀ بلها مې وسیزه
ښۀ بلها سنګار وکړه

زړه د منیر نرم دے
ځانله پکښې لار وکړه

## حج

کلـي کنبــې پــه هــر دېـوال ليکلــي دي
حــج دې مبــارک شــه او پخيـر راغلـے

هســـې دې خبــرې تــه مــې فکــر شــو
ســاز پرېــږده ســندرې تــه مې فکــر شــو

وينــې مــې اے خدايــه تنقيــد نــهٔ کــووم
زهٔ پــه چــا بــې ځايــه تنقيــد نــهٔ کــووم

خو

دا مې د کعبې سره ویستلې دے
دا مې د روضې سره ویستلې دے
دا حجرِ اسود سره ولاړ یمه
دا مې د هغې سره ویستلې دے
دا مې د زم زم اوبه په لاس کښې دي
دا مې د هغې سره ویستلې دے

یه حاجي صیب وه حاجي صیب دا څهٔ کے
نهٔ حاجي صیب مهٔ حاجي صیب دا څهٔ کے
تا خپلې نیکۍ په سیند لاهو کړلې
تا بلها خوارۍ په سیند لاهو کړلې
تا بې تصویرانو نه څهٔ رانهٔ وړل
تا هسې روپۍ په سیند لاهو کړلې
نهٔ نهٔ دا ریا تا سره خوند نهٔ کئ
مونږ پورې خندا تاسره خوند نهٔ کئ

نۀ حاجي صیب دا عادت دې ښۀ نۀ دے
نۀ حاجي صیب دا تاسره خوند نۀ کئ

هر ځائے به قیصې لکه ماشوم نۀ کے
دا حساب کتاب به چاته هم نۀ کے

دوه لاکهه چې تلم نو لګېدلې وي
درې لاکهه مې هلته ایسته اور ته کړې
درې لاکهه چې راغلمه نو لاړلې
نورې لا په لاره دي روانې دي

تلې که راغلي دي خو غلي دي
هر څۀ خدائے لیدلي دي خو غلي دي
یؤ تا د کعبې نه طواف ونکړو
داسې ډېر ښاغلي دي خو غلي دي

هر عمل د دې د پاره مۀ کوه
هر څۀ د نامې د پار مۀ کوه
مینه د خدائے او د رسول حاجي
دا د دیکهاوې د پاره مۀ کوه

زۀ ګورے د دې نه خلاف نۀ یمه
زۀ دې د نامې نه خلاف نۀ یمه
بس دا یۀ تصویر د مینځ نه اوباسه
حج او د عمرې نه خلاف نۀ یمه

یه پیره دا پیر رابانـدې بد لګي
دغه سور کافر رابانـدې بد لګي
دا چې په احرام کښې دې ویستلے دے
دغه یۀ تصویر رابانـدې بد لګي

نور دې عملونه خدائے قبول کړه ټول
بل دې دا مونځونه خدائے قبول کړه ټول
دا چې دې په منډو منډو کړي دي
دغه طوافونه خدائے قبول کړه ټول

نور بس زما ستا په کار کښې څهٔ کار دے
صبه ستا زما په کار کښې څهٔ کار دے
یه منهره غلے شه چاړا به شي
ستا نو د ملا په کار کښې څهٔ کار دے

ماته به کله کله مور يوه قيصه کوله
او د قيصې سره به يې دا يوه ټپه کوله

عالمه يوځ تر بل ځاربږئ
دنيا د غم ټالي، وهي ورانه به شينه

زۀ لا ماشوم وومه زما ذهن پرې کار نۀ کوۀ
خو د قيصې د اورېدو نه مې انکار نۀ کوۀ
قيصه دې سر وخوري قيصه مې هېڅ يادۀ نۀ ده

خو آ ټپه راته رايادۀ شوله
د باران شپه راته رايادۀ شوله
يوۀ حادثه راته رايادۀ شوله

چا وې نن بيا په پښور کښې دهماکه شوې ده
چا وې نن بيا په ښائيستونو باندې اور پورې دے

چا وې نن بيا په سرو ګلونو باندې اور پورې دے

د ډېره درده مې سلګۍ وړې وړې وکړې
دومره بې وسه ووم چې ځانته مې خبرې وکړې
چې دا سړے څوک دے
دا لېونے څوک دے

دا هم ما وژني هم تا وژني هم ځان وژني
بس انسانان لېوني شوي دي انسان وژني

دا چې په غېږ کښې د اسمان لمنو اور نيولے
دا جوړې بيا چا سرو تنکو ګلو ته لور نيولے
اے بس دے ښار پرېږده روزګار پرېږده حالات ښۀ نۀ دي
ما درله کلي کښې په خپل ګاونډ کښې کور نيولے

استاذ په سکول کښې يؤ ماشوم راپاسؤ
وئيل يې بچيه پلار دې څۀ کار کوي

ماشوم څۀ ډېر په غرېؤنيولي انداز
خپلو ملګرو ته چاپېر وکتل
سترګې يې ټيټې کړې او رو شان يې وې
استاد جي آ په دهماکه کښې مړ دے
يؤ څو رڼې اوښکې يې په مخ تېرې شوې
دې ترږې زمکې داسې جذب کړې چې
لکه چيند خه چې مېږے راکاږي
بيا يې قيصه ورته څۀ داسې وکړه
استاد جي زۀ چې کله کور ته لاړ شم

د دې بستې نه کتابونه لرګېږم
په دې بستې کښې د پالشو ډبے
زړه کېږه او یو زور برش کېږدم
مور ته مې وایم بې بې ښار ته لاړم
مور مې څهٔ ډېر په غریبۍ نیولې انداز
وائی بچیه څه الله دې مل شه

بیا د دې ښار د یو سړک په غاړه
په یو فټ پات دغه کپړه خوره کړم
سره د برش او د پالشو کېږم
بیا د دې ښار دغې رنډو خلقو له
د پېزارونو صفائي کوومه
که چا نه لس غوارم پینځه راکوي
که پینځه اوغوارم بیا نهٔ راکوي

استاد رانده مې ورته ځکه اوي
مانه تر اوسه څه تپوس ونکړو
چې دې بسته کښې کتابونه خوند کئ
په دې چاچو کښې قلمونه خوند کئ
په دې بکسه کښې خو رنګونه خوند کئ

خو زۀ ګیله د چا نه ځکه نۀ کوم
چې په دې ښار کښې انسان بلکل نشته
دلته د زړۀ خاوندان بلکل نشته
دلته په چا کښې ایمان بلکل نشته
دلته په سترګو کښې نظر هم نشته
دلته زما غوندې نهر هم نشته
ماشوم قیصه لا ختمه کړې نۀ وه
چې د چهتې تلې یې اووهله

آ خاموشي ورسره ماته شوله
ماشوم په مخ دواړه لاسونه راښکل
آ خپلې اوښکې يې پرې وچې کړلې
خو په تلو تلو کښې يې استاذ جي ته وې
بې ادبي معاف خو منبر وائي چي
د لوږې مرمه نۀ، نو سوال د چا نه څله وکړم؟
رزق هغه راکړي نشه ورپسې خپله وکړم

که ډېر غم دې په زړهٔ وي نو بیخي به درنه هېر شي
زما سره لږ کېنه نو ساقي به درنه هېر شي

زما د زړه سحرا ته د ژوند یؤ ماښامے راوړه
ساګانې به دې وخاندي سپرلي به درنه هېر شي

زما په دوارو لاسو کښې زنځیر داسې شرنګېږي
قسم دے لېوني، چې خپل بنګړي به درنه هېر شي

منبر داسې خبرې کړئ چې وبه ورته خاندې
منبر داسې سړے دے چې سړي به درنه هېر شي

يو بونيرے دے
چټ ليونے دے

شڈل بڈل دے
رښتيا پاګل دے

په قد چنار دے
په رنګ لړ خوار دے

اوس يې څواني ده
اوس يې خاني ده

زور کوي هم نۀ
زور مني هم نۀ

چې څۀ يې په زړۀ وي
هغه يې په خله وي

په امن مړ دے
په مينه پائي

سندرې اوري
سندري وائي

## سپینې سپینې مه وایه

منیر بونیرے

چا پلار او مور پرېښودل
چا کور او ورور
پرېښودل

تورو پرې سپین
پرېښودل
سپینو پرې تور
پرېښودل

چا پرې مزدور مړ که
چا پرې تربور مړ که

چا پرې تنور لمبه که
چا پرې تنور مړ که

څوک یې نامې له ګټي
څوک یې جامې له ګټي

څوک یې د خېټې تنور
څوک یې نشې له ګټي

چا پرې ایمان خرڅ که
چا پرې ایمان واخست

چا پرې انسان خرڅ که
چا پرې انسان واخست

یوځ ضرورت یادووم
او جې دولت یادووم

منافقت نهٔ کووم
منافقت یادووم

عجميـــان تــول ښـــکلي دي
عربيـــان تـــول ښـــکلي دي

زمـــا مـــذهب انســـانيت
انســـانان تـــول ښـــکلي دي

مقتـــديان تـول ښائيســـته دي
امامـــان تـــول ښـــکلي دي

په ايمان تـول مې خوښ دي
پــه ايمـان تـول ښـکلي دي

کـــه دي د لـــر کـــه د بـــر
افغانـــان تـــول ښـــکلي دي

منيـــر جـــان هـــم مـــنم خـــو
بونيريـــان تـــول ښـــکلي دي

# ټپیزې

نۀ شي وادۀ په کور زړه شي
چې په دیدن د ورور مړه شي
توتې توتې وړه وړه شي
د سرې ډولۍ په ارمان مړه شي
نصیب دې مۀ شه په نکریزو سرۀ لاسونه

شونډې مې وچې وچې کېږي
خدائے خبر بیا څۀ راپېښېږي
په کم نصیبو سیند وچېږي
ستا د دیدن ولې بهېږي
په ما بامپوښه شوه له تندې پکښې مرمه

د لوړو غرونو په سر ګرځه
څه وړے تږے نهر ګرځه
ګرېوان شلېدلے بهر ګرځه
دا مرور مرور ګرځه
که مې رضا کړې د هندوې څوئے به يمه

کۀ تۀ په خپل حسن مغرور يې
زما خمار زما سرور يې
زه دې ترلا تۀ مې تربور يې
دبنجو ونې بلها ګورې
د حسن حورې پکښې اچوي تالونه

نـــهٔ دې د کلــي نـــهٔ د ښـــار کــړم
غربتــه ډېــر دې خــوار و زار کــړم
د لـــوې کمـــره دې ګـــوزار کـــړم
مینـې دې داســې پـامتـــه دار کــړم
لکــه تنـــزرے بـــې شـــپېلۍ نعـــرې وهینـــه

د لېونـــــو دا څـــــهٔ یـــوه ده؟
دنیــا لا ښـــهٔ پـــه خـــوب ویـــده ده
ورځ هـــم د کـــال هـــومره اوږده ده
یــــوه روژه بلـــــه غرمـــــه ده
جانـــان ســـرے راولېـــږهٔ چـــې رادېشـــینه

رضا مې څۀ په زړۀ چاؤدون کړې
جانانه خلاص مې د بېلتون کړې
ځان مې شپېلۍ او تۀ مې شپون کړې
د هندوستانه مې راستون کړې
د ګوریستانه به دې څوک راستونه وینه

يۀ څو په شمار خبرې کېږي
ډېرې د کار خبرې کېږي
اورمه يار خبرې کېږي
ستا د رخسار خبرې کېږي
زۀ سپېلني درپسې څکه ګرځومه

نۀ شو مه تېنګ د بنګړو شرنګ ته
د زورورو سترګو جنګ ته
شمع يې بله کړه پتنګ ته
لمبې يې نۀ پرېږدي خپل څنګ ته
پتنګان روغ وزرې وړي سوې راوړينه

يۀ د سپرلي غوندې رنګين دے
بل خوند يې خوږ لکه ګبين دے
سترګې يې شنې رخسار يې سپين
دے
په زړۀ زمري غوندې سنګين دے
چې هر قدم په اور کښې ږدي ماله راځينه

ے بلھا کارونہ یې ویجاړ شي
رنګ یې تک تور پہ لمر د هاړ شي
نازکې شونډې یې پاړ پاړ شي
څوک چې د یار کلي تہ لاړ شي
چې بې دیدنہ ترې راځي نو مړ دې شينہ

## بخت منیر او د وصال مازیګر

مونږه واړه وو چې چرته به تلو نو په ګاډو ،لارو ،کوڅو او دکانونو کښې به د اردو سندرې غږېدې په هغه وخت کښې به هم د پښتنو شاعرانو ملګرو شعرونه لیکل. وخت بدل شو ټولنیزې رسنۍ راغلې، هر څه ئې بدل کړل، نن په نوم ټي وي چېنلو باندې ئې خاورې واړولې. یا هغه وخت وُه چې د ټي وي پروګرامونو له به څوک تلل نو د ځان سره به ئې ښو خلکو د چغچې ګېښنان ورل چې دا سې د ښه راتلو لپاره ځان ته اسانتیا پیدا کړي.هم دغسې به د غزل وئیلو لپاره به دغه لاره خپلېده.اوس د سوشل میډیا دور دے، هغه د نن په نوم ټي وي چېنلو والا هم فیسبوک او یوټیوب چېنلو ته کښېناستو، اوس هر سړے خپل غږ ټولې نړۍ ته ښه په اسانه رسولی شي

قیصه اوږدېږي خو څو کلونه وړاندې کینګر ګلی بونېر ته د باچا بونېري خوا له تلی وومه د هغوي په حجره کښې د موسی احمد سالار، سمیع الله ارماني، سلمان یوسفزے او نور ګڼ شمیر ملګرو سره په خبرو کښې بوخت وومه چې ناڅاپه راته باچا بونېري ووئیل چې نیا رکه دلته نانسېر بونېر کښې بخت منیر نومې هلک دے بلها ښکلی شعر لیکي

ما چې یې شعرونه واورېدل نو د بخت منیر لیدو ته لېوالہ شومه او باچا بونېري ته مې ووئیل چې دا شعرونه او نور شعرونه خو چې سړے د بخت منیر نه رېکارډ کړي.ما به په دغه وخت کښې "د وصال مازیګر" په نوم خپرونه د فېسبوک لپاره جوړوله نو ځکه مې وغوښتل چې دا ښکلي شعرونه هم د بخت منیر په غږ کښې رېکارډ کړم.د باچا بونېري دې کور ودان وي د بخت منیر سره یې په موبائل رابطه وکړه او لږ ساعت پس د باچا بونېري حجرې ته یو ساده باده کلیوال هلک راغی او هم دغه منیر بونېرے وو.د خبر پخېر نه پس ئې راته بلها خواږه شعرونه ووئیل.یو خوا ئې په خپلو شعرونو کښې د پښتون اولس درد نغمه کړے وُه نو بل خوا ورله خدائے پاک لهجه او غږ هم ورکړے وُه د شعر د وئیلو اندازئې دا سې لګېده لکه پهې په پرهر- دغه مازیګر مو په عمربېګ کینګرګلی کښې د منیر بونېري نه "د وصال مازیګر" خپرونه رېکارډ کړه او د ملګرو سره مو د فیسبوک له لارې شریکه کړه.نن منیر بونېرے په ټوله نړۍ کښې د ادب مینه وال لري. زه ویاړم چې د بخت منیر سره تر منیر بونېري ملګرے یم او خپله مند یم چې زمونږ د مینې او ملګرتیا دا سفر به تر عمره روان وي-زه د منیر بونېري په شاعرۍ خبره نه کوومه ځکه چې زهٔ د ادب په میدان کښې په خپله زده کوونکی یم، تکنیکي غلطۍ به پکښې وي، د منیر بونېري په شاعرۍ کښې کلیوالہ او په خصوصي توګه بونېرۍ لهجه ډېره زیاته ده، باید په دې پرې نیوکه ونه شي. کار ته دې ورله ملګرې وګورې چې منیر بونېري او نورو شاعرانو ملګرو د ادب یعنې د شعر په میدان کښې څومره کار وکړو. څومره خلک یې د شعر سره اشنا کړل-اوس څو په لارو ،کوڅو، ګاډو او دکانونو کښې د اردو سندرې نه بلکې ملګرو د پښتنو شاعرانو شعرونه اوري،د شاعر لیدو ته لېوالہ وي او د زړه نه ورله مینه هم ورکوي.مونږ د ښو مشرانو شاعرانو نه دا هم او [illegible] چې هغوي به چاته دا هم نه شو وئیلې چې زهٔ شاعر یمه خو اوس شکر دے دغه هر څه بدل شو، خلکو ته شعر هم وئیل ے شو او ځان ته شاعر هم. منیر بونېري خپله شاعري د عام اولس نه واخله د پاکستان تر پارلیمانه ورسوله.دا د منیر بونېري خوش بختي ده چې په ژوند ورله پښتنو [illegible] کړه

کنې پښتانه خو پس له مرګه خلکو ته درناوے وربخښي-

زه خوشحاله یمه چې زما کړاو بې ځایه نه وو، هغه د بونېر په دنګو دنګو غرونو کښې [illegible] هغه ورک اواز مې رېکارډ کړو او پښتنو ته مې ورسوو. خو کله کله د ځان سره د استاد صابر دا شعر هم زمزمه کړمه

چې زما ملګرې دې پښتو وائي پښتون دې مني

ما ته دې خېر دے نومورے ادیب نه وائي څوک

هر څوک ما د منیر بونېري د شاعرۍ مسوده نه ده لوستې خو شاعري مې ورله اورېدلې ده، د پښتون اولس درد ئې نغمه کړے-په دې کړکېچن حالاتو ئې نیوکې کړې دي.په شاعرۍ کښې ئې د راتلونکې سبا زېرے دے-

خدائے دې وکړي چې منیر بونېرے [illegible] لار هم دغسې جاري وساتي او خدائے دې وکړي چې منیر بونېرے په دې لاره ستړے نه شي

په پښتنه مینه او درنښت

نیازک خان

درګۍ ملاکنډ

۰۲.۱۰.۲۰۱۹

Designed by: Sanaullah Zawab

شهباز خپرندویه ټولنه

برېښنالیک shahbazpublications@gmail.com

اړیکشمېرې ۰۷۹۷۹۲۰۰۰۸ - ۰۷۷۶۹۲۰۰۰۸ - ۰۷۸۷۸۶۸۸۱۶

پته: بي بي حوا عالي لېسې ترڅنګ حاجي عظیم مارکېټ حاجي زمان کوڅه

جلال اباد ښار